# د جرمني ژبې پښویه

# Deutsche Grammatik

لیکوال: محمدکریم نور

د لیکوال نور چاپ شوي کتابونه:

ژرونالیستي څېلونه

ځانمرګی ژبی (ناول)

**بسم الرحمن الرحيم**

**ربي زدني علما**

## د جرمنۍ ژبې الفبې

| کره الفبې | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| A/a<br>آ | B/b<br>بې | C/c<br>څې | D/d<br>دې | E/e<br>اې | F/f<br>اېف | G/g<br>ګې | H/h<br>هه | I/i<br>اي |
| J/j<br>يوت | K/k<br>كه | L/l<br>اېل | M/m<br>اېم | N/n<br>اېن | O/o<br>او | P/p<br>پې | Q/q<br>كوُ | R/r<br>اېر |
| S/s<br>اېس | T/t<br>تې | U/u<br>اُو | V/v<br>فَو | W/w<br>وې | X/x<br>اېكس | Y/y<br>اېپسېلون | Z/z<br>څېټ | |

| ځانګړي او اوملَوټ توري | | |
|---|---|---|
| ß | اېس څېټ | دغه توری د (s) په څېر ويل کېږي لکه (Straße) شتراسې. |
| Ä/ä | آ– اوملَوټ | د انګرېزۍ (a) په وزن ويل کېږي لکه (Ärger) اېرګر يا اېرګه. |
| Ö/ö | او– اوملَوټ | لکه د (o) په توګه ويل کېږي، خو د تلفظ په وخت کې شونډې نورې هم راټولېږي لکه (Mögen) موګن. |
| Ü/ü | اُوو– اوملوټ | کابو د (u) په څېر ، خو د تلفظ په وخت کې شونډې نورې هم راټولېږي لکه(Zurück) څورُوک. |

## پېژند ويیکی (Der Artikel)

که مو پام شوئ وي، په پښتو کې وايو چې: ما "**يو**" کتاب وپېره. انارګل "**يوه**" کتابچه ومونده . همدغه د "**يو**" او "**يوه**" کلمې پېژند ويیکي (د تعريف توري) يا آرټيکلونه دي. په همدې توګه په جرمنۍ ژبه کې هم پېژندويیکي (د تعريف توري) يا آرټيکلونه شتون لري چې د نوم د بدرګه کوونکي په نامه هم يادېږي. دوی د دې لپاره کارول کېږي چې د يوه نوم:

- نوری (جنس) راوښيي چې نرينه دی که ښځينه يا منځينه (مخنث).

- شمېر يې راوښيي چې يو ګړی (مفرد) دی که ډېر ګړي (جمع).
- پېر (حالت) يې راوښيي چې په کړند پېر (فاعلي حالت)، لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت)، لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) او که په تولپېر (اضافي حالت) کې دی.

**د پېژندوييکي (د تعريف توري يا آرټيکل) ډولونه:**

**نامعين پېژندوييکی Unbestimmter Artikel:**

| Unbestimmter Artikel | | |
|---|---|---|
| **Maskulin**<br>**نرينه** | **Feminin**<br>**ښځينه** | **Neutral**<br>**منځينه (مخنث)** |
| ein<br>يو | eine<br>يوه | ein<br>يو |

نامعين پېژندوييکی (د تعريف نامعين توری) د هغه نوم لپاره کارول کېږي چې نامعين وي او يا هم په غونډله کې په لومړي ځل راشي.

| | |
|---|---|
| انارګل ماته يوه کتابچه راکړه.<br>په دغه بېلګه کې کتابچه مالومه يا مشخصه نه ده چې کومه کتابچه يا د چا کتابچه يا هم کوم ډول کتابچه ده. | Anaargul hat mir **ein** Heft gegeben. |
| په دغه بېلګه کې کتابچه د لومړي ځل لپاره يادېږي. له همدې امله نامعين پېژندوييکی (د تعريف نامعين توری يا آرټيکل) ورته کارول کېږي، خو په دويمه غونډله (جمله) کې چې کتابچه بيا ياده شوې ده، بايد معين پېژندوييکی (آرټيکل) ورته وکارول شي. | Anaargul hat mir **ein** Heft gegeben. **Das** Heft ist liniert. |

د لا ښه ترا سسپېرنې (تشريح) په موخه يو څو نورې بېلګې:

ما **يو** سړی وليد. **يوه** مېرمن راغله . انارګل **يو** موټر وپېره.

په برسېرنو بېلګو کې د "**یو**" او "**یوه**" ویيکي (کلمې) نامعین پېژندوییکي (د تعریف نامعین توري) دي. که پر برسېرنو غونډلو (جملو) غور وشي، په ډاګه کېږي چې نه سړی مالوم دی، نه مېرمن چې څوک دي. او نه هم موټر مشخص یا معین شوی دی چې څه ډول موټر دی. له همدې امله ورته نامعین پېژندوییکی (د تعریف نامعین توری) کارول کېږي.

**د نامعین پېژندوییکي (د تعریف نامعین توری یا آرتیکل) اوړون (ګردان):**

| | **Maskulin**<br>**نرینه** | **Neutral**<br>**منځینه** | **Feminin**<br>**ښځینه** | **Plural**<br>**ډېرګړی (جمع)** |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ<br>کړندپېر | ein Mann | ein Kind | eine Frau | Kinder |
| Akkusativ<br>لنډ کړی پېر | ein**en** Mann | ein Kind | eine Frau | Kinder |
| Dativ<br>لر کړی پېر | ein**em** Mann | ein**em** Kind | ein**er** Frau | Kinder**n** |
| Genitiv<br>تولپېر | ein**es** Mannes | ein**es** Kindes | ein**er** Frau | Kinder |

کړندپېر (فاعلي حالت)، لنډ کړی پېر (مفعولي حالت)، لر کړی پېر (باواسطه مفعولي حالت) تولپېر (اضافي حالت)

نامعین پېژندوییکی (د تعریف نامعین توری) ډېرګړی (جمع) نه لري او منفي بڼه یې په (kein/keine) سره جوړېږي:

| **Singular**<br>**یوګړی** | **Plural**<br>**ډیرګړی** | **Negativ Plural**<br>**منفي ډېرګړی** |
|---|---|---|
| **ein** Stift | Stifte | **keine** Stifte |
| **ein** Kind | Kinder | **keine** Kinder |

نامعین پېژندوییکی (د تعریف نامعین توری) له لاندې نومونو سره **نه کارول** کېږي:

| | |
|---|---|
| له موادو، توکو او مانا نومونو سره | Ich trinke gerne Apfelsaft.<br>زه په خوښۍ سره د مڼو اوبه څښم. |
| که سړی وغواړي چې د دوی ځانګړتیا ته نغوته (اشاره) وکړي، نامعین پېژندوییکی (د تعریف توری) ورسره کاروي. په دغه بېلګه کې د مڼو د اوبو ځانګړتیا (süßen) ته نغوته شوې ده. | Liebe macht blind.<br>مینه سړی ړندوي.<br>Ich suche **einen** süßen Apfelsaft.<br>زه د مڼو خوږې اوبه لټوم. |
| د ځانګي (مسلک)، اړوندۍ (تابعیت) او د دین لپاره نه راځي. | Sie ist **Kellnerin.**<br>Er ist **Deutscher.**<br>Sie ist **Muslimin.**<br>دا ګارسنه ده. دی جرمنی دی. دا مسلمانه ده. |
| له هغو کلمو سره چې یو له بله ناشلېدونکې اړیکې ولري | Angst haben, Tanzen gehen<br>ډارېدل، نڅا ته تلل |
| له ځینو ژبنیزو څرګندنو (اصطلاحاتو) سره | Über Stock und Stein<br>په ټول ملک کې، په ټولو ستونزمنو لارو |
| په متلونو کې | Ende gut, alles gut.<br>چې پای یې ښه وي، ټول ښه وي. |

## معین پېژندوییکی Bestimmter Artikel :

په پښتو ژبه کې معین پېژندوییکی (د تعریف معین توری) نشته، بلکې یوازې نامعین هغه شتون لري، خو په جرمنۍ ژبه کې معین پېژندوییکی (د تعیرف معین توری) شته او په لاندې توګه دی:

| **Bestimmter Artikel** | | |
|---|---|---|
| **Maskulin**<br>**نرینه** | **Feminin**<br>**ښځینه** | **Neutral**<br>**منځینه (مخنث)** |
| der | Die | das |

معین پېژندویيکی (د تعریف معین توری) هغه وخت کارول کېږي چې یو څیز مالوم، معین یا مشخص وي. په همدې توګه له هغو نومونو سره راځي چې وار له وړاندې په غونډله کې یاد شوي وي او یا هم داسې انګېرل کېږي چې دوی پېژندل شوي نومونه دي. که ووایو چې: انارګل یو کتاب لولي. تاسې ته به هرو مرو پوښتنه پیدا شي چې انارګل کوم کتاب لولي. په دې اکر کې کتاب معین یا مشخص نه دی. خو که ووایم چې انارګل د پښتو پښویه یا ګرامر لولي، نو کتاب مالوم، معین یا مشخص شو .

| | |
|---|---|
| Anaargul liest **die** Paschtu Grammatik. | انارګل پښتو پښویه (ګرامر) لولي. |
| **Das** Eis ist kalt. | سړوېی (آیسکریم) سړه (یخه) ده. |
| Ich bin **der** Freund von Maya. | زه د میه ملګری یم. |

د ډېرګړي (جمع) نوم معین پېژندویکی **(die)** دی:

| | **Maskulin** نرینه | **Neutral** منځینه | **Feminin** ښځینه | **Plural** ډېرګړی (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| Nominativ کړندپېر | de**r** Mann | da**s** Kind | di**e** Frau | di**e** Kinder |
| Akkusativ لنډ کړی پېر | de**n** Mann | da**s** Kind | di**e** Frau | di**e** Kinder |
| Dativ لر کړی پېر | de**m** Mann | de**m** Kind | de**r** Frau | de**n** Kindern |
| Genitiv تولپېر | de**s** Mannes | de**s** Kindes | de**r** Frau | de**r** Kinder |

که چېرې له معین پېژندویيکي (د تعریف معین توري) ښخه وړاندې سربل (Präposition) راشي، په ځینو پېرونو (حالتونو) کې پېژندویيکی (د تعریف توری) له سربل سره یو ځای لیکل کېږي:

am (an dem), im (in dem), beim (bei dem), vom (von dem),
ins (in das), zur (zu der)

دغه ډول یو ځای لیکل په ټولیزه (عمومي) توګه په لاندې حالتونو کې راځي:

| | |
|---|---|
| **im** Februar, **am** Mittwoch | له وخت سره |
| **am** Frankfurt Flughafen<br>**ins** Kino gehen | د پېژندل شویو ځیزونو او ځایونو سره |
| **zum** Zuhören | له هغه نوم سره چې له کړ (فعل) څخه جوړ شوی وي :<br>Zuhören له آره یو کړ (فعل) دی، خو دلته د نوم (اسم) په بڼه راغلی دی. |
| **zur** Verfügung stellen<br>**zur** Kenntnis nehmen<br>**im** Stich lassen. | د هغو کلمو لپاره چې یو له بله سره ناشلېدونکې اړیکې لري.<br>Zur Kenntnis له nehmen ، zur Verfügung له stellen او im Stich له lassen سره یو ځای راځي او یوه ځانګړې مانا ورکوي. |

لاندې بېلګې یې په عامه ژبه کې ډېرې کارول کېږي:

ans (an das), aufs (auf das), fürs (für das), hinterm (hinter dem),
überm (über dem) etc.

### د معین پېژندوییکي کارونځ

معین پېژندوییکی (د تعریف معین توری) له هغو نومونو سره راځي:

| | |
|---|---|
| **Die** Erde dreht sich um die Sonne. | چې په ټولیزه توګه پېژندل شوي وي |

| | |
|---|---|
| **Das** Flugzeug fliegt gleich. | چې د حالت په پام کې نیولو سره پېژندل شوي وي |
| Ich habe ein Buch gekauft.<br>**Das** Buch ist sehr interessant. | چې وار له وړاندې په غونډله (جمله) کې یاد شوي وي |
| **die** Türkei, **die** Slowakei<br>**die** Mongolei<br>**die** Niederlande<br>**die** Bundesrepublik Deutschland | په بېدوده (استثنایي) توګه له ځینو هغو جغرافیوي نومونه سره هم راځي چې په (ei–) پای ته رسېدلي، په ډېرګړي (جمع) بڼه راغلي او یا له هغو ملکونو سره چې له نوم سره یو ستاینوم هم ولري. |
| **der** Schwarzland, **die** Alpen,<br>**die** Donau | د طبعي منظرو، غرونو او سیندونو له نومونو سره |

| | |
|---|---|
| Ich wohne in Marburg.<br>Er kommt aus Afghanistan. | **په ټولیزه توګه معین پېژندوییکی (د تعریف معین توری) د هېوادونو له نومونو سره نه راځي.** |
| Ich habe Anaargul getroffen.<br>Ich esse gerne Pizza.<br>Liebe macht blind. | **د وګړو له نومونو، موادو او مانانومونو سره معین پېژندوییکی نه راځي.** |

| |
|---|
| مانا نوم هغه نوم ته وایي چې نه ننګېرېدونکی وي یا په لاس سره نه احساس کېږي، لکه: ښایست، ننګ، روغتیا، مېړانه، پیاوړیتوب، خوښي، وېر، اندېښنه، درناوی، سپکاوی. |

## Das Substantiv نوم

نوم هغه ویی (کلمه) دی چې یو څیز، وګړی، یو ژوی یا یوه ښکارنده (پدیده) نوموي. انارګل، شهباز، طوطي، کلی، ښار، مینه، لېوالتیا، کتاب او قلم ټول نومونه دي.

## د نوم نوری (جنس) Das Genus

په جرمنۍ ژبه کې نوم یا ښځینه دی یا نرینه او یا هم منځینه (مخنث) . لکه په پښتو او نورو ژبو کې د شمېر له مخې یا یوګړی (مفرد) او یا ډېرګړی (جمع) دی . د پېر (حالت) له مخې کولای شي چې په کړندپېر (فاعلي حالت)، لنډکړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت)، لر کړی پېر (با واسطه مفعولي حالت) او یا هم تولپېر (اضافي حالت) کې راشي . د نومونو نوری (جنس) یوازې د دوی له پېژندويیکي (د تعریف توري) (das, die, der) څخه پېژندل کېږي .

### د نرینه نوم نښې

| | | |
|---|---|---|
| **der :** Neffe, Onkel, Sohn, Vater | | هغه نومونه چې په طبعي توګه نرینه وي، نرینه نومونه ګڼل کېږي، لکه وراره، تره، زوی او پلار |
| −**er** | der Lehrer, Schüler | هغه نومونه نرینه دي چې په (−er) تورو سره |
| −**nt** | der Präsident | پای ته رسېدلي وي: |
| −**ient** | der Patient, Referent | **بېدويي (استثنا)** : لاندې څو نومونه ښځینه |
| −**and** | der Doktorand | نومونه دي: |
| −**ant** | der Fabrikant | **die** Butter, Mutter, Oper, Schwester, |
| −**är** | der Revolutionär | etc. |
| −**eur** | der Friseur | |
| −**ör** | der Frisör | |
| −**ier** | der Bankier, Offizier | لاندې څو نومونه منځینه (مخنث) دي: |
| −**or** | der Autor, Doktor | |
| −**ist** | der Polizist, Realist | **das** Alter, Fenster |
| −**e** | der Däne, Franzose | Messer, Wasser, Zimmer etc. |
| −**er** | Geräte: der Computer, | |
| −**ling** | der Frühling, Lehrling, Säugling, | |
| −**ig** | der Essig, Honig | |

| | | |
|---|---|---|
| −**ich** | der Pfirsich, Teppich | |
| −**iker** | der Mechatroniker, | |
| −**s** | der Fuchs, Knirps | |
| **der**:<br>• Befehl<br>• Beginn<br>• Besitz<br>• Flug<br>• Ruf<br>• Schlaf | | هغه نومونه چې له کړ (فعل) څخه جوړ شوي وي او(en) ترې غورځول شوی وي، نرینه دي: له آره د (schlaf) کړ (فعل) له (schlafen)، (Ruf) له (Rufen)، (Flug) له (Fliegen)، (Besitz) له Besitzen، (Beginn) له (Beginnen) او (Befehl) له (Befehlen) څخه اخیستل شوی دی. |
| **der**: Montag, Mai,<br>Frühling, Sommer | | د وخت (ورځ، میاشت او موسم) نومونه نرینه دي |
| **der** Hagel, Regen, Schnee | | باران، ګلۍ، واوره |
| **der** BMW, ICE | | د موټر ډولونه او رېل ګاډي |
| **der** Wein | | الکولي څښاک توکي، خو د وریشو د اوبو یا بیرو لپاره بیا (das) راځي: Das Bier |
| **der** Fels, Granit, Marmor | | مېنرالونه او تیږې: |

**منځینه نومونه** : لاندې نومونه منځینه (مخنث) دي:

| | | |
|---|---|---|
| −**chen**/−**lein**<br>**das**:<br>• Häus**chen**<br>• Vög**lein** | | یو نوم که ښځینه هم وي، خو که د (−lein,−chen) په تورو سره پای ته ورسیږي، منځینه (مخنث) ګڼل کیږي:<br>Das Mädchen |
| −**um** | **das** Datum, Stadium, Zentrum | په همدې توګه د جدول د چپې خوا توري یو نوم منځینه (مخنث) کوي. |
| −**ma** | **das** Klima, Thema | |

| | | |
|---|---|---|
| **–ment** | **das** Parlament, | |
| **–o/–eau:** | **das** Kino, Radio, Niveau | |
| **–at** | **das** Sekretariat, | |
| **–ett** | **das** Ballett | |
| **–in** | **das** Benzin | |
| **–il** | **das** Ventil | |
| **–en:** | **das** Lesen, Schreiben, Kochen | هغه نومونه چې له کړ (فعل) څخه جوړ شوي وي او د جدول د چپ لوري پایتوري ولري، منځینه ګڼل کیږي. |
| **–ing** | **das** Training, Jogging | |
| **das** Deutsch, Englisch, Französisch | | ژبې |
| **das** Güte, Schöne, Wahre, Blau, | | هغه نومونه چې له ستاینوم (صفت) څخه جوړ شوي وي . |
| **das** schöne Kabul, **das** alte Afghanistan | | هغه جغرافیوي ځانګړي نومونه لکه ښارونه، هېوادونه او وچې چې له ځان سره ستاینوم (صفت) ولري، منځینه ګڼل کیږي . |
| **das Ge**wässer, das **Ge**birge | | هغه نومونه او غونډنومونه چې د (Ge–) په مختاړي سره پیل شوي وي . |
| **das** Adlon, das Bella Italia | | د ننداړتون (سینما)، هوټلونو او کاروانسرایونو نومونه. |
| **das:** <br>• Helium <br>• Kupfer <br>• Aspirin | | د ډېرو کیمیاوي موادو، وسپنو او درملو نومونه. |

**ښځينه نومونه :** لاندې نومونه ښځينه دي:

<table>
<tr><td colspan="2">Die:<br>• Frau<br>• Mutter<br>• Oma<br>• Schwester</td><td>هغه نومونه چې ښځينه وګړي په ګوته کوي لکه خور ، مور ...<br>بېدويي (استثنا):<br>das Mädchen, Fräulein</td></tr>
<tr><td>−a</td><td>die Kamera</td><td rowspan="11">د جدول د چپ لوري په پايتورو چې کوم نومونه پای ته ورسېږي، ښځينه ګڼل کېږي</td></tr>
<tr><td>−ade</td><td>die Ballade, Promenade</td></tr>
<tr><td>−age</td><td>die Etage</td></tr>
<tr><td>−aise</td><td>die Marseillaise</td></tr>
<tr><td>−ance</td><td>die Alliance</td></tr>
<tr><td>−anz</td><td>die Ambulanz</td></tr>
<tr><td>−äne</td><td>die Migräne</td></tr>
<tr><td>−ung</td><td>die Zeitung, Meinung</td></tr>
<tr><td>−heit</td><td>die Beliebtheit</td></tr>
<tr><td>−keit</td><td>die Möglichkeit</td></tr>
<tr><td>schaft</td><td>die Herrschaft, Gesellschaft</td></tr>
<tr><td>−e</td><td>die:<br>Erde, Hilfe, Sprache</td><td>خو پرته له نرينه وګړو او ځنارو څخه، لکه :<br>der Junge, der Affe,<br>das Auge, das Ende</td></tr>
<tr><td>−ei</td><td>die Bäckerei, Bücherei</td><td rowspan="6"></td></tr>
<tr><td>−elle</td><td>die madamoiselle</td></tr>
<tr><td>−in</td><td>die Lehrerin, Ärztin</td></tr>
<tr><td>−ität</td><td>die Universität</td></tr>
<tr><td>−ion</td><td>die Information,</td></tr>
<tr><td>−ik</td><td>die Technik, Politik</td></tr>
</table>

| | | |
|---|---|---|
| − **ade** | die Marmelade, Schokolade | |
| −**ette** | die Toilette, Marionette | |
| −**ine** | die Maschine, Lawine | |
| −**ive** | die Alternative, offensive | |
| −**sis** | die Basis | |
| −**ur** | die Natur, Kultur | |
| −**Sal** | die Drangsal | |
| −**t** | **die**:<br>• Furcht<br>• Sicht<br>• Tat | هغه نومونه چې له کړ (فعل) څخه جوړ شوي وي او د (t) پایتوری ولري. (Furcht) له آره له (Fürchten)، (Sicht) له (Sichten) او (Tat) له (Tun) څخه اخیستل شوی. |
| **die** Eins, Zwei, Drei | | ګڼه او د ښوونځي نمرې |
| **die** Titanic, Boeing, Vespa | | بېړۍ، الوتکې او موټر سایکلونه |
| **die** Rose, Tanne | | ګلان او ونې |

| | | |
|---|---|---|
| −**tum** | **der** Irrtum<br>**das** Altertum | ځینې نومونه کېدای شي چې له یو ډول پایتورو سره یا نرینه وي یا منځینه. |
| **das** Haus + **die** Tür + **der** Schlüssel<br>= **der** Haustürschlüssel | | کله چې له څو نومونه څخه یو نوم جوړ شي، نو وروستی نوم د ټول نوم نوری (جنس) ټاکي. |

## ګڼه (Plural)

نوم کېدای شي چې یوګړی (مفرد) وي لکه یو کتاب، یوه کتابچه او یو قلم. همداسې کېدای شي چې ډېرګړی (جمع) وي لکه کتابونه، کتابچې او قلمونه. په جرمنۍ ژبه کې د نومونو ګڼه (جمع) په پینځو ډولونو سره جوړیږي:

| **Singular**<br>**يوګړی (مفرد)** | **Plural**<br>**ډېرګړی (جمع)** | **Pluralendungen**<br>**د ډېرګړي پایتوري** |
|---|---|---|
| der Student | die Studenten | en يا n |
| der Friseur | die Friseure | E |
| das Bild | die Bilder | er يا r |
| der Opa | die Opas | S |
| der Löffel | die Löffel | صفر (هېڅ پایتوری نه لري) |

**قاعده :**

| Singular | Plural | |
|---|---|---|
| der Student<br>der Afghane<br>der Agent | die Studen**ten**<br>die Afgha**nen**<br>die Agen**ten** | هغه نرینه نومونه چې په:<br>(e, ent, and, ant, ist, or) سره او هغه ښځینه<br>نومونه چې په:<br>(e, in, ion, ik, heit, keit, schaft, tät, ung)<br>سره پای ته رسېدلي وي، ډېرګړی (جمع) يې په<br>(n/en) سره جوړيږي. |
| die Station<br>die Krankheit<br>die Tätigkeit | die Statio**nen**<br>die Krankhei**ten**<br>die Tätigkei**ten** | |
| der General<br>der König<br>das Stativ<br>der Frühling<br>das Schicksal | die Generäle<br>die Könige<br>die Stative<br>die Frühlinge<br>die Schicksale | ټول هغه نرینه، ښځینه او منځینه نومونه چې په<br>لاندې پایتورو سره پای ته رسېدلي وي:<br>–al, –ar, –är, –bold, –(e)rich, –eur,<br>–ian, –ich, –ig, –il, –iv, –ling, –nis, –sal<br>ګنه (جمع) يې د (–e) په پایتوري جوړيږي.<br>دغه بڼه تر ټولو ډېره له نرینه او مخنث نومونو سره<br>راځي او کله ناکله اوملوټ هم له ځانه سره لري. |
| das Königtum<br>der Reichtum<br>das Brett | die Königtümer<br>die Reichtümer<br>die Bretter | هغه نرینه او منځینه (مخنث) نومونه چې په<br>(tum) سره پای ته رسېدلي وي، ګنه (جمع)<br>يې په (–er) سره جوړيږي. دغه بڼه ډېره له |

| | | |
|---|---|---|
| der Geist | die Geister | یو ځپیز (یو سیلابه) نومونو سره راځي. |
| der Opa<br>die Oma | die Opas<br>die Omas | هغه نومونه چې په واول او ناځجن (بې فشاره) سېلابونو پای ته رسېږي، ګڼه (جمع) یې په (s–) سره جوړېږي او له ځان سره هېڅ وخت اوملوټ (واولي بدلون) نه لري. |
| das Meeting<br>das Trikot | die Meetings<br>die Trikots | د پردیو ژبو، په تېره انګریزۍ او فرانسۍ ژبو ويي(کلمې) د (s–) په پایتوري سره ډېرګړي (جمع) کېږي. |
| das Mädchen<br>der Metzger<br>der Gürtel | die Mädchen<br>die Metzger<br>die Gürtel | هغه نومونه چي په لاندې پایتورو سره پای ومومي:<br>–chen, –en, –ger, –le, –lein, –ler, –ner, –sel, –tel<br>ګڼه (جمع) یې د یو ګړي (مفرد) په څېر ده او هېڅ پایتورۍ نه اخلي. |
| das Hähnchen<br>der Mechaniker<br>der V**a**ter<br>der V**o**gel | die Hähnchen<br>die Mechaniker<br>die V**ä**ter<br>die V**ö**gel | هغه نرینه او منځینه (مخنث) نومونه چې په –chen, –el, –en, –er او –lein سره پای ومومي، ګڼه (جمع) نه لري، خو هغه نرینه نومونه چې د (u, o, a) توري ولري، کېدای شي چې دوی اوملوټ (واولي) بدلون وموميي. |

## پېر (Kasus)

پېر (حالت) په غونډ یا غونډله (جمله) کې د یوه نوم یا نومځري (ضمیر) څرنګوالی یا رول ښيي یا هم د غونډ یا غونډلې (جملې) د نورو توکو سره د دوی اړیکي څرګندي.

په جرمنۍ ژبه کې یو نوم یا نومځری (ضمیر) کېدای شي چې په کړند پېر (فاعلي حالت یا Nominativ)، لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت یا Akkusativ)، لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت یا Dativ) یا تولپېر (اضافي حالت یا Genitiv) کې راشي:

### کړند پېر (Nominativ)

| | |
|---|---|
| **Anaargul** schreibt einen Brief. | انارګل خط لیکي. |

د یوه کار کوونکي ته کړند (فاعل) وایي. په برسېرنه بېلګه کې انارګل د یوه کار (خط لیکلو) سرته رسوونکی دی. په دې مانا چې انارګل د خط لیکلو کړند یا فاعل دی. له همدې امله دی په کړند پېر (فاعلي حالت) کې رغبدلی دی.

### لنډ کړی پېر (Akkusativ)

| | |
|---|---|
| Anaargul schreibt **einen Brief.** | انارګل خط لیکي. |

کړی (مفعول) هغه وګړي یا څیز ته وایي چې یو کار پې کیږي. په دې بېلګه کې خط په خپله لنډ کړی (مفعول) دی، ځکه چې په ده د انارګل لخوا یو کار سر ته رسیږي. له همدې امله په لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت) کې رغبدلی دی.

### لر کړی پېر (Dativ)

| | |
|---|---|
| Anaargul gab **Laila** einen Brief. | انارګل لیلا ته یو لیک ورکړ. |

په دې بېلګه (مثال) کې په ناسیده یا غیر مستیمه توګه په لیلا یو کار سر ته رسیږي او هغه دا چې انارګل دې ته یو لیک ورکوي. له همدې امله لیلا په خپله لر کړی (با واسطه مفعول) ده یا په لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت یا Dativ) کې راغلې ده. د لیلا او انارګل تر منځ واسطه خط دی چې انارګل ورکړ. له همدې امله لیلا ته لر کړی یا با واسطه مفعول وایي.

### تولپېر (Genitiv)

| | |
|---|---|
| Das ist die Wohnung **meiner Freundin.** | دا زما د ملګرې کور دی. |

په دې ډبلګه کې ملګرې په تولپیر (اضافي حالت) کې راغلې ده. دغه پېر (حالت) د کور او ملګرې تر منځ اړیکه څرګندوي چې کور د چا ملکیت دی یا په چا پورې اړه لري.

**په څلورو پېرونو (حالتونو) کې د یو ګړي (مفرد) نوم اوړون (ګردان):**

| Singular – یوګړی (مفرد) | | | |
|---|---|---|---|
| | Maskulin<br>نرینه | Feminin<br>ښځینه | Neutral<br>منځینه (مخنث) |
| Nominativ<br>کړند پېر | der Vater<br>پلار | die Mutter<br>مور | das Kind<br>ماشوم |
| Akkusativ<br>لنډ کړی پېر | den Vater | die Mutter | das Kind |
| Dativ<br>لر کړی پېر | dem Vater | der Mutter | dem Kind |
| Genitiv<br>تولپېر | des Vaters<br>د پلار | der Mutter<br>د مور | des Kindes<br>د ماشوم |

## Die n–Deklination

### n – اوړون (ګردان)

ځینې نرینه نومونه په هغه ټولګي (ګروپ) پورې اړه نیسي چې د n – اوړون (ګردان) یا د (Die n–Deklination) په نامه سره یادېږي. دوی په ټولو پېرونو (حالتونو) کې، پرته له یوګړي کړند پېر (مفرد فاعلي حالت) یا (Nominativ Singular) څخه، په اوړون کې د n(e)– پایتوري خپلوي.

| | **Singular**<br>**یوګړی (مفرد)** | **Plural**<br>**ډېر ګړی (جمع)** |
|---|---|---|
| Nominativ<br>کړند پېر | der Student<br>زده کړ یال | die Löwen<br>زمریان |
| Akkusativ<br>لنډ کړی پېر | den Student**en** | die Löw**en** |
| Dativ<br>لر کړی پېر | dem Student**en** | den Löw**en** |
| Genitiv<br>تولپېر | des Student**en**<br>د زده کړ یال | der Löw**en**<br>د زمریانو |

| | | | |
|---|---|---|---|
| der:<br>• Jung**e**<br>• Kolleg**e**<br>• Neff**e** | | د n-Deklination په ټولګي (ګروپ) پورې په تېره هغه نومونه اړه نيسي چې نرينه وي او په (e) سره پای ته رسېدلي وي. | |
| همدارنګه هغه نرينه نومونه چې په لاندې توررو سره پای ته رسېدلي وي. | | | |
| -**and** | der Doktorand<br>des Doktorand**en** | -**ant** | der Praktikant<br>des Praktikant**en** |
| -**at** | der Kandidat<br>des Kandidat**en** | -**ent** | der Absolvent<br>des Absolvent**en** |
| -**et** | der Athlet<br>des Athlet**en** | -**ist** | der Journalist<br>des Journalist**en** |
| -**oge** | der Pädagoge<br>des Pädagog**en** | -**nom** | der Ökonom<br>des Okönom**en** |
| -**soph** | der Philosoph<br>des Philosoph**en** | -**graf** | der Fotograf<br>des Fotograf**en** |

| −**urg** | der Chirurg, des Chirurg**en** | |
|---|---|---|
| der:<br>• Afghane<br>• Türke | des:<br>• Afghanen<br>• Türken | همداسې هغه نومونه چې تابعيت په ګوته کوي. |

ځينې نرينه نومونه په لنډ او لر کړي پېر (بې واسطه او با واسطه مفعولي حالت) کې د (n−) يا (ns−) پايتوري اخلي:

| **Nominativ**<br>**کرېند پېر** | **Akkusativ**<br>**لنډ کړی پېر** | **Dativ**<br>**لر کړی پېر** | **Genitiv**<br>**تولپېر** |
|---|---|---|---|
| der Name | den Name**n** | dem Name**n** | des Name**ns** |

## Der Genitiv mit Von

### تولپېر (اضافي حالت) له **von** سره

کله چې يو نوم په تولپېر (اضافي حالت) کې پرته له پېژندويکي (د تعريف توري يا آرټيکل) يا پرته له ستاينوم (صفت) څخه راشي، د تولپېر (اضافي حالت) بڼه يې د (von) له سربل (Präposition) سره جوړيږي . همدارنګه که په يوه غونډله (جمله) کې دوه يا ډېر نومونه په تولپېر (اضافي حالت) کې راشي، يو خوا يې پوهاوی يو څه ستونزمن شي، بلخوا په خپله د غونډلې (جملې) لوست او اواز هم يو څه سخت او بې خونده کيږي. له همدې امله بنه ترا دا ده چې د ځينو نومونو تولپېر (اضافي حالت) د (von) له سربل (Präposition) سره ورغيږي.

| **پرته له ستاينوم څخه** | **له ستاينوم سره** |
|---|---|
| Das Verbot **von** Party<br>د بنډار جوړولو بندول (منع کول) | Das Verbot der russischen Party<br>د روسي بنډار بندول (منع کول) |
| Die Einfuhr **von** Äpfel | Die Einfuhr der afghanischen Äpfel |

<table>
<tr><td>د منو راوړل(واردول)</td><td>د افغاني منو راوړل (واردول)</td></tr>
<tr><td colspan="2">Ich habe den Ehemann der afghanischen Frau von Sprachkurs getroffen.<br>ما د ژبې د کورس (چې د ژبې په کورس کې ده) د افغانې مېرمن مېړه لیدلی دی.<br>په برسېرنه غونډله کې دوه نومونه په تولیېر (اضافي حالت) کې راغلي دي. له همدې امله دویم هغه یې له (von) سره رغېدلی دی.</td></tr>
</table>

## Die Deklination von Eigennamen

### د ځانګړنومونو اوړون

ځانګړ نومونه (شخصي نومونه) کېدای شي چې د وګړو وي لکه انارګل، جانان، یا د جغرافیوي ځایونو لکه کندهار، وردک او یا هم د ادبي پنځونو لکه د سلیمان لایق چونغر، د جهاني کوه طور او د ښاغلي زیار پښتو پښویه. په جرمنۍ ژبه کې کله چې ځانګړ نومونه اوړون (ګردان) مومي، په تولیېر (اضافي حالت) کې د (s) پایتوری اخلي او کېدای شي چې له خپل اړوند نوم څخه مخکې یا وروسته راشي:

| وروسته له نوم څخه | مخکې له نوم څخه |
|---|---|
| Das Buch Majas<br>د میه کتاب | Majas Buch<br>د میه کتاب |

| | |
|---|---|
| Nargis´ Buch<br>Shams´ Handy | هغه نومونه چې په (s, ß, x, z) سره پای ته رسېدلي وي، د دوی پر سر یوازې د اپاسترافي(´) نښه راوړل بسیا کوي. |

# ستاينوم (Das Adjektiv)

ستاينوم (صفت) هغه ويی (کلمه) ده چې يو نوم ستايي، د نوم په اړه مالومات راکوي، نوم تشريح کوي او يا يې د ځانګړتياوو په اړه غربيږي:

| | | |
|---|---|---|
| Anaargul ist erkältet.<br>انارګل يخ وهلی دی. | Das Buch ist zerrissen.<br>دا کتاب څيرې دی. | Das Auto ist schön.<br>دا موټر ښکلی دی. |

په برسېرنو بېلګو (مثالونو) کې "يخ وهلی، څيرې او ښکلی" ستاينومونه (صفتونه) دي چې د خپلو اړوند نومونو په اړه مالومات راکوي.

ځينې کسان په دې اند دي چې يوازې ښې ځانګړتياوې ستاينومونه (صفتونه) ګڼل کيږي، خو له آره هر هغه ويی (کلمه) چې يو نوم ستايي، که ښه وي که بده، د ستاينوم (صفت) په نامه يادېږي.

**د ستاينوم (صفت) ډولونه:**

- **خبري او کړولي (قيدي) ستاينوم**

**Prädikative und adverbiale Adjektive**

خبري ستاينوم په غونډله (جمله) کې د خبر يوه برخه ده چې له مرستيالکړ (کمکي فعل) څخه وروسته راځي. که نوم نرينه وي که ښځينه يا منځينه (مخنث)، که يوګړی (مفرد) وي او که ډېرګړی (جمع)، ستاينوم په خپله آره بڼه پاتې کيږي او اوړون (ګردان) نه مومي:

| | |
|---|---|
| دا (ښځه يا نجلۍ) خپه ده.<br>په دغه بېلګه کې"خپه" خبري ستاينوم (صفت) دی. دی يوازې د (sein, bleiben, werden) له کړ (فعل) څخه وروسته راځي. | Sie ist **traurig.**<br>دا (ښځه) خپه ده. |
| ماشومان د خندا په حال کې يو خوا بل خوا منډې وهي.<br>په دغه بېلګه کې "خنداند" کړولي (قيدي) ستاينوم (صفت) دی چې له کړ (فعل) څخه وروسته راځي او دی ستايي. | Die Kinder laufen **lachend** herum. |

| | |
|---|---|
| Er läuft **langsam.**<br>دی ورو ورو ځي.<br>Sie spricht **leise.**<br>دا په ټیټ غږ خبرې کوي. | کړولي ستاینوم (قیدي صفت) د کړ (فعل) په اړه مالومات ورکوي.<br>په دې بېلګو کې (lustig, langsam, leise) کړولي ستاینومونه (صفتونه) دي. |
| Er/sie/es ist müde. Wir/Sie sind **müde.**<br>Sie lacht **leise.** Du weinst **leise.**<br>ستاینوم په خبري او کړولي بڼه کې اوړون (ګردان) نه مومي. | |

**(Attributives Adjektiv) لنډستاینوم**

لنډستاینوم د پېژندوییکي (د تعریف توري یا آرټیکل) او نوم تر منځ راځي او باید اوړون ومومي:

| der **schwarze** Stift | die **kalte** Nacht | das **rote** Auto |
|---|---|---|
| **تور** قلم | **سړه** شپه | **سور** موټر |

په برسېرنو بېلګو کې (schwarze, kalte, rote) لنډ ستاینومونه (صفتونه) دي. دغه ډول ستاینوم (صفت) باید د نوم د نوري (جنس)، شمېر او پېر (حالت) پر بنسټ اوړون ومومي.

| | |
|---|---|
| Er ist ein sehr gut<u>**er**</u> Ehemann. | دی ډېر ښه مېړه (خاوند) دی.<br>په دغه بېلګه کې خاوند (Ehemann) نرینه نوم دی او په کړند پېر (فاعلي حالت) کې راغلی دی، نو ځکه یې ستاینوم (صفت) د (er–) پایتوري اخیستي دي. |
| Du kannst heutzutage so ein<u>**en**</u> gut<u>**en**</u> Ehemann nicht finden. | ته نن سبا داسې یو ښه خاوند نه شې پیدا کولای.<br>په دغه بېلګه کې خاوند په لنډ کړي پېر یا مفعولي حالت (Akkusativ) کې راغلی دی. له همدې امله یې ستاینوم (صفت) د (en–) پایتوري اخیستي دي. |

## د ستاینوم کمزوری اوړون (Schwache Adjektivdeklination)

له معین پېژندوییکي (د تعریف معین توری یا آرټیکل) سره د ستاینوم (صفت) اوړون چې د

(–en, –e) پایتوري خپل کړي، د ستاینوم د کمزوري اوړون په نامه یادېږي.

| | | |
|---|---|---|
| Die jung**e** Dame<br>ځوانه مېرمن | der rot**e** Rock<br>سره لمن (دامنه) | das dick**e** Buch<br>پېړر کتاب |
| په برسېرنو بېلګو کې د معین پېژندوییکي او نوم تر منځ ستاینوم د (e) په توري پای ته رسېدلی دی. | | |

**په څلورګونو پېرونو (حالتونو) کې د لنډ ستاینوم اوړون:**

| | Maskulin<br>نرینه | Neutral<br>منځینه | Feminin<br>ښځینه | Plural<br>ګڼه (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| Nom. | der **alte** Mann<br>سپین ږیری سړی | das **leere** Blatt<br>تشه پاڼه | die **rote** Rose<br>سره غوټۍ | die **guten** Menschen<br>ښه خلک |
| Akk. | den **alten** Mann | das **leere** Blatt | die **rote** Rose | die **guten** Menschen |
| Dat. | dem **alten** Mann | dem **leeren** Blatt | der **roten** Rose | den **guten** Menschen |
| Gen. | des **alten** Mannes<br>د سپین ږیري سړي | des **leeren** Blattes<br>د تشې پاڼې | der **roten** Rose<br>د سرې غوټۍ | der **guten** Menschen<br>د ښو خلکو |

د ستاینوم کمزوری اوړون له ناټیک نومځرو (مبهمو ضمیرونو) څخه وروسته هم په همدې بڼه رغېږي:

| | |
|---|---|
| **dieser, diese, dieses, diese:** | دغه زوړ کتاب ډېر په زړه پوري |

| | |
|---|---|
| Dieses alte Buch ist sehr interessant. | دی. |
| **jener, jene, jenes, jene**:<br>Jener Mensch, der viel liest, ist intelligent. | هر هغه څوک چې ډېر لوست کوي، ویښیار دی. |
| **jeder, jede, jedes, jede**:<br>Jede Frau muss gut behandelt werden. | له هرې ښځې سره باید ښه رویه وشي. |
| **mancher, manche, manches, manche**:<br>Manche Menschen denken gar nicht nach. | ځینې خلک هېڅ فکر نه کوي. |
| **solcher, solche, solches, solche**:<br>Solches Buch kann man wenig finden. | داسې کتاب سړی ډیر لږ پیدا کولای شي. |
| **welcher, welche, welches, welche**:<br>Welche Uhr magst du? | کوم ساعت دې خوښېږي؟ |
| **derjenige, diejenige, dasjenige, diejenigen**:<br>Dasjenige Kind, das gar nicht spielt, wird irgendwann sehr dick. | هغه ماشوم چې هېڅ لوبې نه کوي، یو وخت به ډېر چاغ شي. |
| **derselbe, dieselbe, dasselbe, dieselben**:<br>Derselbe junge, der laut schreit, hat meine Uhr kaputt gemacht. | همدغه هلک چې په لوړ غږ چیغې وهي، زما ساعت مات کړ. |

## د ستاینوم غښتلی اوړون (Starke Adjektivdeklination)

کله چې له ستاینوم څخه مخکې پېژندوییکی (د تعریف توری یا آرټیکل) نه وي یا یې په مخکې آر (اصلي) عددونه لکه یو، دوه درې او یا هم ناوړېدوني نومځري (هغه ضمیرونه چې نه گردان کېږي) راغلي وي، نو ستاینوم په غښتلې بڼه اوړون مومي:

| | Maskulin<br>نرینه | Neutral<br>منځینه | Feminin<br>ښځینه | Plural<br>ګڼه (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| Nom. | alter Mann<br>زوړ سړی | leeres Blatt<br>تشه پاڼه | rote Rose<br>سره غوټۍ | gute Menschen<br>ښه خلک |
| Akk. | alten Mann | leeres Blatt | rote Rose | gute Menschen |
| Dat. | altem Mann | leerem Blatt | roter Rose | guten Menschen |
| Gen. | alten Mannes<br>د زاړه سړي | leeren Blattes<br>د تشې پاڼې | roter Rose<br>د سرې غوټۍ | guter Menschen<br>د ښو خلکو |

| په څلورګونو پېرونو (حالتونو) کې د نرینه، منځینه او ښځینه نومونو سره د ستاینوم اوړون | |
|---|---|
| Nominativ<br>کړندپېر | **Alter Mann** bleibt am Wochenende zu Hause.<br>زوړ سړی د اوونۍ په پای کې په کور کې پاتیږي. |
| Akkusativ<br>لند کړی پېر | Du brauchst kein **leeres Blatt**.<br>ته تشې پاڼې ته اړتیا نه لرې. |
| Dativ<br>لر کړی پېر | **Roter Rose** reißt du kein Blatt ab.<br>له سرې غوټۍ څخه به پاڼه نه شکوې. |
| Genitiv<br>تولپېر | Die Gesichter **guter Menschen** erkennst du nicht schnell.<br>ته د ښو خلکو مخونه ژر نه شې پېژندلای. |

**له نامعین پېژندوییکي (د تعریف نامعین توري) سره د ستاینوم اوړون:**

| | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | ein gut**er** Mann<br>یو ښه سړی | ein gut**es** Kind<br>یو ښه ماشوم | eine gut**e** Frau<br>یوه ښه ښځه | gut**e** Leute<br>ښه خلک |
| **Akk.** | ein**en** gut**en** Mann | ein gut**es** Kind | eine gut**e** Frau | gut**e** Leute |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| **Dat.** | ein**em** gut**en** Mann | ein**em** gut**en** Kind | ein**er** gut**en** Frau | gut**en** Leute**n** |
| **Gen.** | ein**es** gut**en** Mann**es** د یوه ښه سړي | eines gut**en** Kind**es** د یوه ښه ماشوم | ein**er** gut**en** Frau د یوې ښې ښځې | gut**er** Leute د ښو خلکو |

د ستاینوم (صفت) دغه ډول اوړون له برسېرنو پایتورو سره د نامعین پېژندوییکي (د تعریف نامعین توري) (ein)، د (was für ein) ځرګندني (اصطلاح) او د (mein, dein, sein, ihr, Ihr, unser) له تولنومځرو (ملکي ضمیرونو) څخه وروسته ټول یو ډول راځي.

| | |
|---|---|
| meine gut**en** Zeit**en**<br>mein**en** gut**en** Zeit**en** | همدارنګه د (kein) له منفي پېژندوییکي (د تعریف توري) سره او کله چې د (mein, dein, sein, ihr, Ihr, unser) تولنومځري (ملکي ضمیرونه) د ملکي پېژندوییکي (ملکي آرتیکل) په بڼه راشي، ستاینوم په ټولو پېرونو (حالتونو) کې د (en–) پایتوري خپلوي. |
| dunk**el**:<br>ein **dunkles** Zimmer<br>ein **dunkler** Raum | هغه ستاینومونه (صفتونه) چې په (el–) سره پای ومومي، د پایتورو په خپلولو سره یې (e–) تل غورځي. |
| Teu**er**:<br>ein **teures** Auto,<br>**teure** Autos<br>ein **teurer** Mantel<br>**teure** Mäntel | هغه ستاینومونه (صفتونه) چې په (er–) پای ته ورسېږي، (er–) یې کله ناکله غورځي. |
| ein **langer**, **roter**, **glatter** Kleid | که چېرې څو ستاینومونه یو پر بل پسې راغلي وي، ټول یې باید ګردان شي او ټول یې یو ډول اوړون ومومي. |

## نوم کړل شوي ستاینومونه (Substantivierte Adjektive)

هغه نومونه چې له ستاینومونو (صفتونو) څخه جوړ شوي وي یا د نوم په بڼه راغلي او کارول کېږي، د نوم کړل شویو ستاینومونو په نامه یادېږي. دوی هم داسې اوړون (ګردان) مومي لکه ستاینوم او پېژندویيکی (د تعریف توری) چې یو ځای راغلي وي او یا د لنډستاینوم په څېر ګردانېږي، خو یوازې نوم ترې غورځي. د دغه ډول نوم کړل شوي ستاینوم لومړی توری لوی لیکل کېږي.

| | Maskulin<br>نرینه | Neutral<br>منځینه | Feminin<br>ښځینه | Plural<br>ډیرګړی |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | der Bekannte<br>پېژندل شوی | das Neue<br>نوی | die Fremde<br>پردۍ | die Alten<br>زاړه |
| | ein Bekannter | ein Neues | eine Fremde | Alte |
| **Akk.** | den Bekannten | das Neue | die Fremde | die Alten |
| | einen Bekannten | ein Neues | eine Fremde | Alte |
| **Dat.** | dem Bekannten | dem Neuen | der Fremden | den Alten |
| | einem Bekannten | einem Neuen | einer Fremden | Alten |
| **Gen.** | des Bekannten<br>د پېژندل شوي | des Neuen<br>د نوي | der Fremden<br>د پردۍ | der Alten<br>د زړو |
| | eines Bekannten<br>د یوه پېژندل شوي | eines Neuen<br>د یوه نوي | einer Fremden<br>د یوې پردۍ | Alter<br>د زړو |

په برسېرن جدول کې (Bekannte, Neue, Fremde, Alte) له آره (په اصل کې) ټول ستاینومونه (صفتونه) دي، خو دلته د نوم په توګه راغلي دي. لومړی توری یې لوی لیکل شوی دي.

## لنډ کړستاینومونه (Attributive Partizipien)

هغه ستاینومونو ته ویل کېږي چې له کړ (فعل) څخه جوړ شوي او له نوم څخه مخکې راغلي وي. دوی د لنډستاینوم په څېر اوړون (ګردان) مومي:

| | **Maskulin** | **Neutral** |
|---|---|---|
| Nominativ<br>کړند پېر<br>(فاعلي حالت) | **Partizip II – دویم کړ ستیانوم** | |
| | der geschriebene Brief<br>لیکل شوی لیک | das gelesene Buch<br>لوستل شوی کتاب |
| | ein geschriebener Brief<br>یو لیکل شوی لیک | ein gelesenes Buch<br>یو لوستل شوی کتاب |
| | **Partizip I – لومړی کړستاینوم** | |
| | der lesende Mann<br>لوستونکی سړی | das weinende Kind<br>ژړاند ماشوم |
| | ein lesender Mann<br>یو لوستونکی سړی | ein weinendes Kind<br>یو ژړاند ماشوم |
| Akkusativ<br>لنډ کړی پېر<br>(بې واسطه–<br>مفعولي حالت) | **Partizip II – دویم کړ ستیانوم** | |
| | den gelesenen Brief<br>لوستل شوی لیک | das gelesene Buch<br>لوستل شوی کتاب |
| | einen gelesenen Brief<br>یو لوستل شوی لیک | ein gelesenes Buch<br>یو لوستل شوی کتاب |
| | **Partizip I – لومړی کړستاینوم** | |
| | den lesenden Mann<br>لوستونکی سړی | das weinende Kind<br>ژړاند ماشوم |
| | einen lesenden Mann<br>یو لوستونکی سړی | ein schreibendes Kind<br>یو لیکونکی ماشوم |

| | **Feminin** | **Plural** |
|---|---|---|
| Nominativ<br>کړند پېر<br>(فاعلي حالت) | **Partizip II – دویم کړ ستیانوم** | |
| | die geschriebene Geschichte<br>لیکل شوې کیسه | die gelesenen Romane<br>لوستل شوي رومانونه |
| | eine geschriebene Geschichte | gelesene Romane |

| | | |
|---|---|---|
| | یوه لیکل شوې کیسه | لوستل شوي رومانونه |
| | **Partizip I – لومړی کړستاینوم** | |
| | die schminkende Frau<br>سینګار کوونکې ښځه | die lesenden Leute<br>لوستونکي خلک |
| | eine schminkende Frau<br>یوه سینګار کوونکې ښځه | lesende Leute<br>لوستونکي خلک |
| Akkusativ<br>لنډ کړی پېر<br>(بې واسطه-<br>مفعولي<br>حالت) | **Partizip II – دویم کړ ستیانوم** | |
| | die geschriebene Geschichte<br>لیکل شوې کیسه | die gelesenen Romane<br>لوستل شوي رومانونه |
| | eine geschriebene Geschichte<br>یوه لیکل شوې کیسه | gelesene Romane<br>لوستل شوي رومانونه |
| | **Partizip I – لومړی کړستاینوم** | |
| | die schminkende Frau<br>سینګار کوونکې ښځه | die lesenden Leute<br>لوستونکي خلک |
| | eine schminkende Frau<br>یوه سینګار کوونکې ښځه | lesende Leute<br>لوستونکي خلک |

## کړولونه (Adverbien)

کړولونه (قیدونه) د یوه کړ (فعل) د پېښېندنې خرنګوالی، ځای، مهال، لامل او داسې نورې ځانګړتیاوې څرګندوي. کړول (قید) هغه ویی (کلمه) ده چې یو کړ (فعل)، ستاینوم (صفت) او یا یو بل کړول (قید) ستايي.

| | | |
|---|---|---|
| **Verb** | Ich lese **langsam.** | زه ورو لوست کوم. |
| **Adjektiv** | Das ist ein **sehr** altes Buch. | دا یو ډېر زوړ کتاب دی. |
| **Adverb** | Ich war **sehr** früh **hier.** | زه دلته ډېر مخکې وم. |

**د کړولونو (قیدونو) بېلابېلې بڼې :**

| | |
|---|---|
| **Lokaladverbien:**<br>da, vorn(e), hier, hinten,<br>hin, dort, oben, her<br>*Wir sind hier **vorne**.* | • تونې کړول (مکاني قید) :<br>چې د یوه کړ (فعل) د پېښېدلو ځای راښیي.<br>مور دلته په مخکې (وړاندې) یو. |
| **Temporaladverbien:**<br>gestern, jetzt, vorher, immer,<br>heute, damals, zuerst, oft,<br>morgen, sofort, meist(ens)<br>*Ich war **gestern** in Kabul.* | • مهالي کړول<br>د یوه کړ (فعل) د پېښېدلو وخت ځرګندوي.<br><br>زه پرون په کابل کې وم. |
| **Modaladverbien:**<br>so, gern, leider,<br>glücklicherweise, umsonst,<br>genauso, irgendwie,<br>hoffentlich<br>*Sie liest **gerne** Zeitung.* | • دودوال کړول (مودال قید)<br>د یوه کړ (فعل) دود ټاکي، ځرنګیز کړول هم<br>بلل کېږي، ځکه چې د یوه کړ د پېښېدنې حالت<br>یا ځرنګوالی ښیي.<br>دا (ښځه) په خوښی ورځپانه لولي. |
| viel, fast, kaum, wenig,<br>sehr, etwa<br>*Er hat wenig Geld.* | • کچ و مېچ (اندازه)<br>دغه کړول (قید) د یوه کړ (فعل) د پېښېدلو<br>کچه یا اندازه په ګوته کوي.<br>دی لږ روپۍ لري. |

## پرتله (Die Komparation)

په جرمنۍ ژبه کې ستاینوم (صفت) پوړۍ (درجې) لري چې یو له بل سره پرتله کېدای شي. همداسې یې کړول (قید) هم در واخلئ. ستاینوم (صفت) او کړول (قید) د پرتلې درې پوړۍ (درجې) لري او د اوړون (ګردان) په وخت کې پایتوري خپلوي، لکه په لاندې بېلګو کې:

**مثبت (Positiv)** : په دغه بڼه کې ستاینوم (صفت) یا کړول (قید) کوم پایتوری نه نیسي.

| | |
|---|---|
| Das Fahrrad ist **so** schnell **wie** der Bus | بایسکېل همدومره ګړندی دی لکه بس. |

**پرتلیز (Komparativ)** : په دغه بڼه کې ستاینوم یا کړول د (er–) پایتوري خپلوي.

| | |
|---|---|
| Das Auto ist schnell**er** als das Fahrrad. | موټر له بایسکېل څخه ډېر ګړندی دی. |

**لوړترین (Superlativ)** : په دغه بڼه کې ستاینوم یا کړول د (est–) پایتوري نیسي.

| | |
|---|---|
| Das Flugzeug ist **am** schnell**ste**n. | الوتکه تر ټولو ګړندۍ(چابک ترینه) ده. |

**مثبت (Positiv)** : مثبته (مطلقه) پرتله چې ستاینوم (صفت) هېڅ پایتوري نه خپلوي، یا د یوه نوم (وګړي، څیز) ځانګړتیا څرګندوي یا د دوو وګړو یا څیزونو تر منځ همرنګي. له ستاینوم (صفت) څخه مخکې د (so) یا (genauso) ویي (کلمې) راځي او پرتله شوی څیز په (wie) ورسره تړل کیږي.

| | |
|---|---|
| Laila ist **hübsch.**<br>لیلا **ښکلې** ده. | د یوه نوم ځانګړتیا |
| Anaargul ist **(genau)so** groß wie Spingul.<br>انارګل **همدومره** لوړ دی **لکه** سپین ګل. | د دوو نومونو پرتله |

**پرتلیزه (Der Komparativ)**

کله چې د یوه نوم توپیر له بل نوم سره د یوې پوړۍ (درجې) په کچه وي، نو د دې توپیر د څرګندلو لپاره پرتلیزه بڼه کاروو. ځینې پرتلیزې بڼې سمدودې او ځینې هغوی یې بېدودې (بې قاعده) دي.

**سمدودې (باقاعده) بنې :**

| | Grundform–آره بنه | | Komparativ–پرتليزه بنه | |
|---|---|---|---|---|
| Adjektiv | billig | ارزانه | billiger | ارزان تر |
| | schnell | ګړندی | schneller | ګړندی تر |
| | langsam | ورو | langsamer | ورو تر |
| Adverb | wenig | لږ | weniger | لږ تر |

هغه ستاينومونه (صفتونه) او کړولونه (قيدونه) چې په (el, er) يا غبرګغږ (Diphthong) سره پای ته رسېدلي وي، د (e–) توری يې غورځي:

| Grundform–آره بنه | | Komparativ–پرتليزه بنه | |
|---|---|---|---|
| dunkel | تياره | dunkler | تياره تر |
| respektabel | محترم | respektabler | محترم تر |
| teuer | ګران | teurer | ګران تر |

څو ځېيز ستاينومونه (څو سيلابه صفتونه) او د (oft) کړول د پرتليزې بنې په جوړښت کې اوملوټ (Umlaut) يا واولي بدلون خپلوي.

| Grundform–آره بنه | | Komparativ–پرتليزه بنه | |
|---|---|---|---|
| hoch | لوړ | Höher | لوړ تر |
| jung | ځوان | Jünger | ځوان تر |
| oft | ډېر | Öfter | ډېرترا وخت |

**بيدوده (بې قاعده) بڼې**

| | Grundform –آره بڼه | | Komparativ –پرتليزه بڼه | |
|---|---|---|---|---|
| **Adjektiv** | gut | ښه | besser | ښه ترا (بهتره) |
| **Adverb** | bald | ژر | eher | ژر تر |
| | viel | ډېر | mehr | ډېر تر |
| | gern | په خوښۍ | lieber | په مينه |

له پرتله شوي کس يا څيز څخه وړاندې تل د (als) کلمه راځي:

| | |
|---|---|
| Torpekei ist hübscher **als** Zarina. | تورپېکۍ له زرينې څخه ښکلې ده. |

**لوړترين (Der Superlativ)**

لوړترينه پوړۍ په يوه ټولي (ګروپ) کې د يوه نوم لوړترينه درجه په ګوته کوي او ښيي چې دی په خپله ډله کې تر ټولو نورو د لوړې پوړۍ (درجې) خاوند دی. لوړترينه پوړۍ له (am+superlativ) او همدرانګه له (Artikel+superlativ) سره رغيږي:

| Grundform | am + Superlative | Artikel + Superlativ |
|---|---|---|
| schön<br>ښکلی | am schönsten<br>ښکلی ترين (تر ټولو ښکلی) | der/die/das schönste<br>ښکلی ترين |
| teuer<br>ګران (قيمته) | am teuersten<br>ګران ترين (تر ټولو ګران) | der/die/das teuerste<br>ګران ترين |
| dunkel<br>تياره | am dunkelsten<br>تياره ترين (تر ټولو تياره) | der/die/das dunkelsten<br>تياره ترين |

د کړول (قید) لوړترینه پوړۍ د (am) له مختاړي سره جوړېږي:

| | |
|---|---|
| انارګل تر ټولو ښه لوبه کوي. | Anaargul spielt **am besten.** |

که لوړترینه پوړۍ له نوم څخه وړاندې راشي، معین پېژندوییکی (د تعریف معین توری) کارول کېږي:

| | |
|---|---|
| زرینه ښایسته ترین (تر ټولو ښایسته) کمیس لري. | Zarina hat **das schönste** Kleid. |
| په دې بېلګه کې لوړترینه پوړۍ (das schönste) له نوم (Kleid) څخه وړاندې راغلې ده. | |

که لوړترینه پوړۍ د لر ستاینوم (خبري صفت، Prädikativ) په بڼه د (werden, sein) له کړ (فعل) سره راغلې وي، کولای شي چې دواړه بڼې واخلي:

| | |
|---|---|
| Das Gemälde ist **das schönste.**<br>منظره ښایسته ترینه (تر ټولو ښایسته) ده. | Das Gemälde ist **am schönsten.** |

په لوړترینه پوړۍ کې ځینې ستاینومونه (صفتونه) او د (Oft) کړول (قید) اوملوټ (Umlaut) یا واولي بدلون هم خپلوي:

| **Grundform** –آره بڼه– | | **Superlativ** –لوړترینه بڼه– | |
|---|---|---|---|
| warm | تود | am wärmsten | تودترین |
| hoch | لوړ | am höchsten | لوړ ترین |
| jung | ځوان | am jüngsten | ځوان ترین |
| oft | زیاتره | am öftesten<br>(auf häufigsten) | تر ټولو ډېر |

| Grundform<br>آره بنه | Superlativ<br>لوررینه پوړۍ | |
|---|---|---|
| heiß | heißeste | کله چې ستاینوم (صفت) په لاندې تورو :<br>• (–e, –s, –ss, –ß, –x, –sk, –sch)<br>• (–d/–t)<br>• (–haft, –los)<br>سره پای ومومي، لوړترینه پوړۍ يې په (–est) سره جوړيږي. |
| mild | mildeste | |
| brüsk | brüskeste | |
| ratlos | ratloseste | |
| stolz | stolzeste | |
| ungewiss | Ungewisseste | |
| bewegt | Bewegteste | |
| komplex | Komplexeste | |
| zaghaft | Zaghafteste | |
| frisch | am frischesten | **بېدويي** (استثنا): |
| süß | am süßesten | |
| spannend | am spannendsten | |
| groß | am größten | |
| neue | neueste | هغه ستاینومونه (صفتونه) چې په خپلواک (واول) او غبرګغږ سره پای ته ورسيږي، وړترينه بنه يې په (–est, –st) سره جوړيږي : |
| frohe | froheste | |

**د لوړترينې بڼې بېدويي** (استثنا):

| | Grundform<br>**آره بنه** | Komparativ<br>**پرتليزه بنه** | Superlativ<br>**لوړترينه بنه** |
|---|---|---|---|
| Adjektiv | gut<br>ښه | besser<br>ښه ترا (بهتره، غوره) | am besten<br>ښه ترين |

| | | | |
|---|---|---|---|
| Adverb | viel<br>ډېر | mehr<br>ډېر تر | am meisten<br>تر ټولو ډېر |
| | gern<br>په خوښۍ | lieber<br>په مینه | am liebsten<br>تر ټولو په ډېره مینه |
| | bald<br>ژر | eher<br>ژرتر | am ehesten<br>ژرترین |

دا چې د ستاینوم (صفت) په لوړترینه پوړۍ کې یو نوم تر نورو هغوی د لوړې پوړۍ (درجې) خاوند وي، له ده سره پرتله شوي ځیزونه د (von/vom) په کلمه سره ځرګندیږي:

| |
|---|
| Gulalei ist die hübscheste (**von** allen Schülerinnen). |
| ګلالۍ تر ټولو (زده کوونکیو) څخه ښایسته (ښایسته ترینه) ده. |

اړینه نه ده چې د غونډلې دغه برخه چې په لندیو (قوسونو) کې راغلې ده، ولیکل شي، خو که د لا ښه ترا روښانتیا په پار یا هم که لیکل یې هرو مرو وي، کېدای شي چې په برسېرنه توګه ولیکل شي.

که چېرې بېلابېل ځیزونه له یو بل سره پرتله شوي او له دوی څخه یوه ته لوړترینه پوړۍ ورکړل شوې وي، لوړترینه پوړۍ د کړول (قید) په توګه کارول کیږي.

| | |
|---|---|
| Der Wagen ist **am schönsten.** | موټر تر ټولو ښکلی دی. |

موټر له ډېرو نورو ځیزونو سره چې همرنګي نه دي، پرتله شوی او لوړترینه پوړۍ یې ګټلې ده.

که چېرې لوړترینه پوړۍ د لرستاینوم (خبري صفت) په توګه راغلې وي، په دې مانا چې همرنګي ځیزونه له یو بل سره پرتله شوي دي.

| | |
|---|---|
| Dieser Fernseher ist **der schönste.** | دغه ټېلویزیون تر ټولو ښایسته دی. |

برسېرنه غونډله ښيي چې تېلويزيون له نورو تېلويزيونو سره پرتله شوی دی او ده لوړه درجه ګټلې ده. اړينه نه ده چې د نورو تلويزيونو يادونه دې وشي. په دغه اکر (حالت) کې ستاينوم (صفت) په خپله لوړترينه پوړۍ کې دي ‎–(e)st‎ پايتوري خپلوي.

## نومځری (Pronomen)

نومځری (ضمير) هغه ويی (کلمه) ده چې د نوم پر ځای راځي يا د نوم استازيتوب کوي. دی په غونډله (جمله) کې د نوم د بې شمېره راتګ يا يادښت مخنيوی کوي:

**انارګل** زما ملګری دی. **دی** د اوونۍ په پای کې زما کره راځي.

**Anaargul** ist mein Kumpel. **Er** kommt am Wochenende zu mir.

په برسيرنه لومړی غونډله کې **انارګل** نوم دی. په دويمه هغه کې د انارګل پر ځای "**دی**" د نومځري (ضمير) په توګه راغلی او د انارګل د نوم د بيا يادولو مخه يې نيولې ده. همداسې په جرمنۍ غونډله کې **(Anaargul)** نوم دی او په دويمه غونډله کې يې پر ځای نومځری (Er) راغلی دی.

| **Nomen–نوم** | **Pronomen–(ضمير) نومځری** |
|---|---|
| **Nicole** studiert Jura.<br>نيکول حقوق لولي (زده کړه کوي) | **Sie** ist sehr fleißig.<br>دا ډېره زحمت کښه ده. |
| **Friedrich** lernt Französisch.<br>فريدريش فرانسوي زده کوي. | **Er** spricht aber gut Englisch.<br>خو دی ښې انګرېزي خبرې کوي. |
| **Ralf** und **Harmut** spielen Fußball.<br>رلف او هارموت د فوټبال لوبه کوي. | **Sie** spielen Fußball seit Jahren.<br>دوی له کلونو راهيسې د فوټبال لوبه کوي. |

په برسېرنو بېلګو کې د نومونو (نيکول، فريدريش، هارموت) پر ځای اړوند نومځري (دا، دی، دوی) او په جرمنۍ غونډلو کې (sie, er, sie) راغلي دي.

نومځرى (ضمير) کولاى شي چې نه يوازې په خپله بڼه، بلکې د پېژندوييکي (د تعريف توري يا آرټيکل) په بڼه هم له نوم سره يو ځاى راشي. د بېلګې په توګه:

| **Artikel**<br>**پېژندوييکى** | **Pronomen**<br>**نومځرى** |
|---|---|
| Das ist **mein** Buch.<br>دا زما کتاب دى. | Das ist **meins.**<br>دا زما دى. |
| **Dein** Wagen ist schön<br>ستا موټر ښکلى دى. | **Deiner** ist schön.<br>ستا ښکلى دى. |
| **Dieser** Wagen gefällt mir.<br>دا موټر مې خوښېږي. | **Dieser** gefällt mir.<br>دا مې خوښېږي. |

## ځانګړنومځرى (Das Personalpronomen)

ځانګړنومځري (شخصي ضميرونه) د وګړو لپاره لکه زه، ته، دى، موږ او ... لپاره راځي. دوى (نومځري) په خبرو اترو کې د وګړو رول په ګوته کوي.

| | **Pronomen** | **نومځري** |
|---|---|---|
| يوګړي (مفرد) نومځري | ich | زه (لومړى کس) |
| | du | ته (دويم کس) |
| | er | دى (نرينه، دريم کس) |
| | sie | دا (ښځه، دريم کس) |
| | es | دى ( مخنث، دريم کس) |
| ډېرګړي (جمع) نومځري | wir | موږ (لمړي کسان) |
| | ihr | تاسې (دوه يا ډېر کسان) |
| | Sie | تاسې (دويم کسان) |
| | sie | دوى (دريم کسان) |

لومړی کس د هغه کس په مانا دی چې خبرې کوي، دویم کس د مخاطب لپاره یا هغه کس ته چې خبرې ورسره کېږي، ویل کېږي. دریم کس هغه څوک په ګوته کوي چې په اړه یې خبرې کېږي، لکه:

| | |
|---|---|
| **1. Person Singular und Plural**<br>**لومړی یوګړی (مفرد) او ډېرګړي (جمع) وګړي:**<br>په دغو بېلګو کې "زه" او "موږ" خبرې کوو.<br>له همدې امله لومړي کسان ګڼل کېږو. | Ich gehe zur Schule.<br>زه ښوونځي ته ځم.<br><br>Wir sind Studenten.<br>موږ زده کړیالان یو. |
| **2. Person Singular und Plural**<br>**دویم یوګړي او ډېرګړي وګړي:**<br>په دې بېلګو کې انارګل، تاسې او تاسې (شما) مخاطب یا دویم کسان ګڼل کېږي.<br>ځکه چې له دوی سره مخامخ خبرې کېږي. | Anaargul, zitiere mir ein Gedicht.<br>انارګله، ما ته یو شعر ووایه.<br><br>Ihr seid aus Afghanistan.<br>تاسې له افغانستان څخه یاست.<br><br>Sie sind eine gute Lehrerin.<br>تاسې (شما) یوه ښه ښوونکې یاست. |
| **3. Person Singular und Plural**<br>**دریم یو ګړي (مفرد) او ډېرګړي (جمع) کسان:**<br>په دې بېلګو کې دی، دا، دی او دوی دریم وګړي یا غایب کسان ګڼل کېږي ځکه چې د دوی په اړه خبرې کېږي. | Er/sie/es ist erkältet.<br>دی، دا، دی یخ وهلی، یخ وهلې (زوکام) دی (ده).<br><br>Sie sind Afghanen.<br>دوی افغانان دي. |

## د ځانګړنومځرو (شخصي ضمیرونو) څلورګوني پېرونه (حالتونه):

| Singular– یو ګړی (مفرد) | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| 1.Person | | 2.Person | 3.Person | | |
| **Nom.** | ich | du | er | es | sie |
| **Akk.** | mich | dich | ihn | es | sie |
| **Dat.** | mir | dir | Ihm | ihm | ihr |
| **Gen.** | meiner | deiner | seiner | seiner | Ihrer |

| Plural– گڼه (جمع) | | | |
|---|---|---|---|
| | 1.Pers.<br>لومړی وګړی | 2.Pers.<br>دويم وګړی | 3.Pers.<br>دريم وګړی |
| **Nom.** | wir | Ihr | sie/Sie |
| **Akk.** | uns | euch | sie/Sie |
| **Dat.** | uns | euch | ihnen/Ihnen |
| **Gen.** | unser – زموږ | euer – د تاسې | ihrer/Ihrer –د دوی، ستاسې |

د (Sie) نومځری (ضمير) يو چا ته د درنښت يا احترام په مانا کارول کيږي. که مو پام شوی وي په پښتو يا دري ژبه کې موږ کولای شو چې يوه (د شمېر پر بنسټ) کس ته د "ته" يا "تو" خطاب وکړو، خو همداسې کولای شو چې يوه کس ته د تاسې يا شما خطاب وکړو، حال دا چې شما او تاسې د ډېرو کسانو لپاره هم کارول کيږي. په جرمنۍ ژبه کې هم کيدای شي چې يوه کس ته د (Du) نومځری (ضمير) وکارول شي او همدارنګه د (Sie) هغه.

د (Sie) نومځری ښايي چې د (Du) پر ځای د ناپېژانده کس لپاره د درنښت په موخه وکارول شي، ځکه چې په جرمني کلتور کې سړی له ناپېژانده کس څخه واټن نيسي او هممهال يې دوه اړخيزه احترام ته راغواړي.

## د (Es) منځينه نومځری (Das Pronomen Es)

د (Es) منځينه (مخنث) نومځری په غونډله (جمله) کې په بېلابېلو بڼو سره راتللای شي او ځينې وخت خپله آره (اصلي) مانا هم له لاسه ورکوي. په توليزه توګه په لاندې بڼو سره ډېر راځي:

| | |
|---|---|
| Wie viele Seiten hat **das Buch**? | **د نومځري (ضمير) په بڼه سره:**<br>په دغه بېلګه کې د (Das Buch) پر ځای |

| | |
|---|---|
| **Es** hat 200 Seiten.<br>Ich bin **Krank**.<br>Ich bin **es** auch. | راغلی.<br>**د ستاینوم پر ځای:**<br>په دې بېلګه کې د (Krank) پر ځای (es) راغلی. |
| Ich habe meinem Sohn versprochen, **ihm ein Handy zu kaufen.**<br>Ich habe **es** auch meinem Sohn versprochen. | **د ملي غونډلې (فرعي جملې) پر ځای:**<br>په دغه بېلګه کې د ملي غونډلې پر ځای یوازې (es) راغلی دی. |
| **Es** kommen viele Gäste heute. | **د نارېښتیني کړند (فاعل) پر ځای:**<br>(Es) په خپله د غونډلې آر (اصلي) کړند (فاعل) نه<br>دی، بلکې یوازې د ده پر ځای راغلی دی.<br>په دې بېلګه کې آر کړند مېلمانه (Gäste) دي.<br>له همدې امله کړ (فعل) هم د آر کړند (فاعل) پر بنسټ اوړون موندلی، نه د (Es) پر بنسټ. |
| **Es** regnet. **Es** ist kalt.<br>**Es** ist zwölf Uhr. **Es** ist zu spät.<br>Mir geht´**s** gut.<br>Machen Sie **es** gut. | **د ناوګړیز (غیر شخصي) کړند او کړي په توګه:**<br>په دغه بېلګه کې (Es) د ځینو ناوګړیزو کړونو (فعلونو) د کړند (فاعل) او په ځینو څرګندنو (اصطلاحاتو) کې د کړي (مفعول) په توګه راغلی |

د (Es gibt) څرګندنه (اصطلاح) کومه ځانګړې مانا نه لري، بلکې یوازې د دې لپاره کارول کېږي چې د یوه شي شتون ته نغوته وشي.

| | |
|---|---|
| **Es gibt** viele Läden hier. | دلته ډېرې هټۍ (دوکانونه) شته دي. |

## نومځریز کړولونه (Pronominaladverbien)

هغه کړولونو (قیدونو) ته ویل کېږي چې د خپل جوړښت لومړۍ برخه یې د (da, hier, wo) کړولونه (قیدونه) وي او دویمه برخه یې یو سربل (Präposition) وي. له همدې امله ورته سربلیز کړولونه (Präpositionaladverbien) هم ویل کېږي. د نومځریزو کړولونو (ضمیري قیدونو) لومړۍ برخه کړول (قید) نیولې وي او دویمه هغه یې سربل. د بېلګې په توګه (dagegen) . په لومړۍ برخه کې د (da) کړول (قید) راغلی او له هغه وروسته د (gegen) سربل. نومځریز کړولونه د هغه نوم، غونډ یا د غونډلې (جملې) د یوې برخې پر ځای راځي چې په متن کې یا وار له وړاندې یاد شوي وي او یا به وروسته یاد شي. د بېلګې په توګه :

| |
|---|
| Du schuldest mir 1000€. **Dazu** kommt noch 100€ vom Vorjahr. |
| ته زما زر آیرو پوروړی یې. پر دې سربېره سل آیرو نورې د تېرکال راځي. |

په دغه بېلګه کې د (Dazu) نومځریز کړول (ضمیري قید) د (1000€) پر ځای راغلی دی. د پام وړ هرګوره دا ده چې زر آیرو په متن کې وار له وړاندې یادې شوې دي.

| |
|---|
| Ich denke ständig **daran**, welches Handy ich mir kaufen soll. |
| زه په پر له پسې توګه په دې اړه چورت وهم چې ځان ته کوم یو ګرځند تیلیفون وپېرم. |

په برسېرنه بېلګه کې د (daran) نومځریزکړول (ضمیري قید) د ملې غونډلې ( فرعي جملې) پر ځای راغلی دی، مله غونډله په متن کې هرګوره وروسته له نومځریز کړول څخه راغلې ده.

نومځریز کړولونه (ضمیري قیدونه) اوړون (ګردان) نه مومي، خو کله چې سربل (Präposition) په واول (خپلواک) توري پیل شي، د کړول (قید) او سربل تر منځ د (r-) توری ور ډېرېږي:

| **Adverb** کړول (قید) | **Präposition** سربل | Pronominaladverb نومځریز کړول |
|---|---|---|
| da | auf | Da*r*auf |
| wo | auf | Wo*r*auf |
| da | gegen | Dagegen |
| da | für | Dafür |

## د نومځریزو کړولونو نوملړ

| | **da(r)** | **hier–** | **wo(r)** |
|---|---|---|---|
| an | daran | Hieran | Woran |
| auf | darauf | Hierauf | Worauf |
| aus | daraus | hieraus | Woraus |
| bei | dabei | Hierbei | Wobei |
| durch | dadurch | hierdurch | Wodurch |
| für | dafür | Hierfür | Wofür |
| gegen | dagegen | hiergegen | Wogegen |
| hinter | dahinter | hierhinter | |
| in | darin | Hierin | Worin |
| mit | damit | Hiermit | Womit |
| nach | danach | hiernach | Wonach |
| neben | daneben | hierneben | |
| über | darüber | hierüber | Worüber |
| um | darum | Hierum | Worum |
| unter | darunter | hierunter | Worunter |
| von | davon | hiervon | Wovon |
| vor | davor | Hiervor | Wovor |

| | | | |
|---|---|---|---|
| zu | dazu | Hierzu | Wozu |
| zwischen | dazwischen | hierzwischen | |

نومځریز کړولونه (ضمیري قیدونه) د وګړو یا کسانو لپاره نه کارول کېږي، بلکې د شیزونو لپاره راځي:

| | |
|---|---|
| Ich bin mit ihr ins Kino gegangen.<br><br>Ich bin **damit** ins Kino gegangen. | زه له دې سره سینما ته ولاړم.<br>په دویمه بېلګه کې موږ نه شو کولای چې د (mit ihr) پر ځای (damit) وکاروو، ځکه چې مانا یې غلطېږي. |
| Ich kann mich nicht an sie erinnern.<br>Ich kann mich nicht **daran** erinnern. | زه دا (دغه ښځه یا نجلۍ) نه شم پر زړه کولای یا مې نه پر زړه کېږي.<br>د لومړۍ بېلګې (an sie) په (daran) سره نه شي بدلېدلای، ځکه چې مانا یې غلطیږي. |

په نومځریزو کړولونو (ضمیري قیدونو) کې یوازې د (davon, darunter) هغوی د وګړو او شیزونو لپاره راتللای شي او همدا یوه بېدویې (استثنا) لري.

| |
|---|
| Ich habe viele Freunde, darunter/davon sind einige aus Afghanistan.<br>زه ډېر ملګري لرم، ځینې له دوی/ په دوی کې ځینې له افغانستان څخه دي. |
| Laila hat mir viele Bücher gegeben, darunter/davon sind welche sehr bekannte Romane.<br>لیلا ما ته ډېر کتابونه راکړي دي، ځینې له دوی څخه ډېر پېژندل شوي رومانونه دي. |

## تولنومځری (Das Possessivpronomen)

تولنومځری (ملکي ضمیر) د یوه څیز د ملکیت یا اړوندی د څرګندولو لپاره کارول کیږي چې د چا دی یا پر چا پورې اړه لري. په توليزه (عمومي) توګه تولنومځری (ملکي ضمیر) د پېژندوییکي (آرټیکل) په توګه له نوم څخه وړاندې راځي او د نوم د نوري (جنس) پر بنسټ اوړون مومي:

| | |
|---|---|
| **Mein** Nachbar spricht Russisch. | زما ګاونډی روسي خبرې کوي. |
| Du liebst **deinen Sohn.** | ته له خپل زوی سره مینه کوې. |
| Er schenkt **seiner Tochter** eine Halskette. | دی خپلې لور ته یوه غاړه کۍ ډالۍ کوي. |

په برسېرنو بېلګو کې تولنومځری د پېژندوییکي (آرټیکل یا د تعریف توري) په توګه له نوم څخه وړاندې راغلی او د نوم د نوري (جنس) او پېر(حالت) پر بنسټ يې اوړون (ګردان) موندلی دی.

### د ملکي پېژندوییکي بڼې

د هغه تولنومځري (ملکي ضمیر) بڼې چې د ملکي پېژندوییکي (تعریف توري) په توګه راغلی وي:

| | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **ich** | mein Stift | mein Heft | meine Mappe | meine Fragen |
| **du** | dein Stift | dein Heft | deine Mappe | deine Fragen |
| **er** | sein Stift | sein Heft | seine Mappe | seine Fragen |
| **es** | sein Stift | sein Heft | seine Mappe | seine Fragen |
| **sie** | ihr Stift | ihr Heft | ihre Mappe | ihre Fragen |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| **wir** | unser Stift | unser Heft | unsere Mappe | unsere Fragen |
| **Ihr** | euer Stift | euer Heft | eure Mappe | eure Fragen |
| **sie** | ihr Stift | ihr Heft | ihre Mappe | ihre Fragen |
| **Sie** | Ihr Stift | Ihr Heft | Ihre Mappe | Ihre Fragen |

په جرمنۍ ژبه کې د تول یا ملکیت آرټیکل (Possessivartikel) او تولنومځري (ملکي ضمیر) تر منځ توپیر شته. ملکي پېژندوییکی یوازې نه شي راتللای، حال دا چې تولنومځری (ملکي ضمیر) کولای شي چې یوازې راشي.

| **Possessivartikel**<br>**ملکي پېژندوییکی** | **Possessivpronomen**<br>**تولنومځری (ملکي ضمیر)** |
|---|---|
| Das ist **mein** Fahrrad.<br>دا زما بایسکل دی. | Das ist **meins.**<br>دا زما دی. |

هغه تولنومځري (ملکي ضمیرونه) چې له نوم څخه وړاندې د ملکي پېژندوییکي (تعریف توري) (Possessivartikel) په توګه راشي، د نوري (جنس)، شمېر او پېر پر بنسټ اوړون مومي:

| | **Kasus** | **Maskulin** | **Neutral** |
|---|---|---|---|
| Ich | Nom. | mein Stift | mein Heft |
| | Akk. | meinen Stift | mein Heft |
| | Dat. | meinem Stift | meinem Heft |
| | Gen. | meines Stiftes | meines Heftes |
| Du | Nom. | dein Stift | dein Heft |
| | Akk. | deinen Stift | dein Heft |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | Dat. | deinem Stift | deinem Heft |
| | Gen. | deines Stiftes | deines Heftes |
| Er/Es | Nom. | sein Stift | sein Heft |
| | Akk. | seinen Stift | sein Heft |
| | Dat. | seinem Stift | seinem Heft |
| | Gen. | seines Stiftes | seines Heftes |
| sie | Nom. | ihr Stift | ihr Heft |
| | Akk. | ihren Stift | ihr Heft |
| | Dat. | ihrem Stift | ihrem Heft |
| | Gen. | ihres Stiftes | ihres Heftes |
| wir | Nom. | unser Stift | unser Heft |
| | Akk. | unseren Stift | unser Heft |
| | Dat. | unserem Stift | unserem Heft |
| | Gen. | unseres Stiftes | unseres Heftes |
| Ihr | Nom. | euer Stift | euer Heft |
| | Akk. | euren Stift | euer Heft |
| | Dat. | eurem Stift | eurem Heft |
| | Gen. | eures Stiftes | eures Heftes |
| Sie | Nom. | Ihr Stift | Ihr Heft |
| | Akk. | Ihren Stift | Ihr Heft |
| | Dat. | Ihrem Stift | Ihrem Heft |
| | Gen. | Ihres Stiftes | Ihres Heftes |
| sie | Nom. | ihr Stift | ihr Heft |
| | Akk. | ihren Stift | ihr Heft |
| | Dat. | ihrem Stift | ihrem Heft |
| | Gen. | ihres Stiftes | ihres Heftes |

| | Kasus | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|
| Ich | Nom. | meine Mappe | meine Bücher |
| | Akk. | meine Mappe | meine Bücher |
| | Dat. | meiner Mappe | meinen Büchern |
| | Gen. | meiner Mappe | meiner Bücher |
| Du | Nom. | deine Mappe | deine Bücher |
| | Akk. | deine Mappe | deine Bücher |
| | Dat. | deiner Mappe | deinen Büchern |
| | Gen. | deiner Mappe | deiner Bücher |
| Er/Es | Nom. | seine Mappe | seine Bücher |
| | Akk. | seine Mappe | seine Bücher |
| | Dat. | seiner Mappe | seinen Büchern |
| | Gen. | seiner Mappe | seiner Bücher |
| sie | Nom. | ihre Mappe | ihre Bücher |
| | Akk. | ihre Mappe | ihre Bücher |
| | Dat. | ihrer Mappe | ihren Büchern |
| | Gen. | ihrer Mappe | ihrer Bücher |
| wir | Nom. | unsere Mappe | unsere Büchern |
| | Akk. | unsere Mappe | unsere Bücher |
| | Dat. | unserer Mappe | unseren Büchern |
| | Gen. | unserer Mappe | unserer Bücher |
| Ihr | Nom. | eure Mappe | eure Bücher |
| | Akk. | eure Mappe | eure Bücher |
| | Dat. | eurer Mappe | euren Büchern |
| | Gen. | eurer Mappe | eurer Bücher |
| Sie | Nom. | Ihre Mappe | Ihre Bücher |
| | Akk. | Ihre Mappe | Ihre Bücher |

| | | | |
|---|---|---|---|
| | Dat. | Ihrer Mappe | Ihren Büchern |
| | Gen. | Ihrer Mappe | Ihrer Bücher |
| sie | Nom. | ihre Mappe | ihre Bücher |
| | Akk. | ihre Mappe | ihre Bücher |
| | Dat. | ihrer Mappe | ihren Büchern |
| | Gen. | ihrer Mappe | ihrer Bücher |

**د تولنومځري (ملکي ضمير) بڼې :**

تولنومځري چې پرته له نوم څخه راځي، د نوم ځايناستي ګرځي او په لاندې ډول اوړون مومي:

| | **Kasus** | **Maskulin** | **Neutral** | **Feminin** | **Plural** |
|---|---|---|---|---|---|
| Ich | Nom. | meiner | mein(e)s | meine | meine |
| | Akk. | meinen | mein(e)s | meine | meine |
| | Dat. | meinem | meinem | meiner | meinen |
| | Gen. | meines | meines | meiner | meiner |
| Du | Nom. | deiner | dein(e)s | deine | deine |
| | Akk. | deinen | dein(e)s | deine | deine |
| | Dat. | deinem | deinem | deiner | deinen |
| | Gen. | deines | Deines | deiner | deiner |
| Er/ Es | Nom. | seiner | sein(e)s | seine | seine |
| | Akk. | seinen | sein(e)s | seine | seine |
| | Dat. | seinem | seinem | seiner | seinen |
| | Gen. | seines | seines | seiner | seiner |
| sie | Nom. | ihrer | ihr(e)s | ihre | ihre |
| | Akk. | ihren | ihr(e)s | ihre | ihre |
| | Dat. | ihrem | ihrem | ihrer | ihren |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| | Gen. | ihres | ihres | ihrer | ihrer |
| wir | Nom. | unserer | unser(e)s | unsere | unsere |
| | Akk. | unseren | unser(e)s | unsere | unsere |
| | Dat. | unserem | unserem | unserer | unseren |
| | Gen. | unseres | unseres | unserer | unserer |
| Ihr | Nom. | eurer | eur(e)s | eure | eure |
| | Akk. | euren | eur(e)s | eure | eure |
| | Dat. | eurem | eurem | eurer | euren |
| | Gen. | eures | eures | eurer | eurer |
| Sie | Nom. | Ihrer | Ihr(e)s | Ihre | Ihre |
| | Akk. | Ihren | Ihr(e)s | Ihre | Ihre |
| | Dat. | Ihrem | Ihrem | Ihrer | Ihren |
| | Gen. | Ihres | Ihres | Ihrer | Ihrer |
| sie | Nom. | ihrer | ihr(e)s | ihre | ihre |
| | Akk. | ihren | ihr(e)s | ihre | ihre |
| | Dat. | ihrem | ihrem | ihrer | ihren |
| | Gen. | ihres | ihres | ihrer | ihrer |

## نغوتنومځری (Das Demonstrativpronomen)

نغوتنومځری (اشاري ضمير) د نوم ځايناستی ګرځي او يوه څيز يا يوه وګړي ته نغوته (اشاره) کوي. په دې نغوتې (اشارې) سره د دوی په شتون ټينګار کيږي او يا اړين ګڼل کيږي. له همدې امله د غوندلې (جملې) په لومړي سر کې راځي.

| | |
|---|---|
| Welches Auto möchtest du kaufen?<br>**Dieses.** | کوم موټر غواړې چې وپيرې؟<br>دغه. (د نوم ځايناستی) |
| **Derjenige**, der gute Geschichte | هر هغه کس چې ښې کيسې ليکي، |

| | |
|---|---|
| schreibt, bekommt den Job. | دنده به تر لاسه کړي. (په شخص تینګار کول) |

نغوتنومځري (اشاري ضميرونه) کولای شي چې د معين پېژندوييکي (د تعريف معين توري يا آرټيکل) په بڼه راشي يا د نوم ځايناستي وګرځي. د معين پېژندوييکي په بڼه له نوم څخه مخکې راځي او د نومځري (ضمير) په بڼه د نوم پر ځای. دوی بېلابېلې بڼې لري چې تر ټولو ډېرې يې د (die, das, der) دي. دوی د معين پېژندوييکي (د تعريف معين توري يا آرټيکل) سره يو شان دي، خو يوازې د لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) او د تول (ملکيت) بڼې يې توپير لري.

| | |
|---|---|
| Kennst du Anaargul?<br>انارګل پېژنې؟<br>**Den** kenne ich nicht.<br>هغه نه يې پېژنم. | کله چې وغواړو په يوه ځيز ټينګار وکړو، د يادونې لپاره يې اړين وګڼو يا وغواړو چې د پام وړ يې وګرځوو، لاندې نغوتنومځري کاروو: |
| **Derjenige**, der ehrenhaft seine Aufgaben erledigt, ist glücklich.<br>هر هغه څوک چې خپله دنده په ريښتينولۍ سره سرته رسوي، بختور دی. | –der/die/das,<br>–derjenige/dasjenige/diejenige(n)<br>–derselbe/dieselbe/dasselbe |
| Hast du einen neuen Rock?<br>نوې لمن (دامنه) لرې (اخيستې ده)؟<br>Nein, er ist **derselbe** wie gestern.<br>نه، دا همغه ده چې پرون مې اغوستې وه. | |
| Welches Buch möchtest du?<br>کوم يو کتاب غواړې؟<br>**Dieses.**<br>دغه. | کله چې له يوه ټولي (ګروپ) څخه يو ځيز خوښوو يا ټاکو، لاندې نغوتنومځري کاروو:<br>–dieser/diese/dieses<br>–jener/jene/jenes |

کله چې نغوتنومځري (اشاري ضميرونه) له نومونو سره یو ځای د معین پېژندوییکي (د تعریف معین توري) په توګه راشي، د همدوی په څېر اوړون مومي. توپیر یې له معین پېژندوییکي سره دا دی چې په دغه اکر کې نغوتنومځری (اشاري ضمير) يوه ځانګړې (خاص) څېز ته نغوته (اشاره) کوي، د هغه ورتیا یا اړتیا په ګوته کوي او د پام وړ يې ګرځوي:

| |
|---|
| Mit **der** Einstellung kommst du in **die** Gesellschaft nicht weiter.<br>په دغه ذهنیت یا چلن په دې ټولنه کې وراندې نه شې تللئ. |

په دغه بېلګه کې د ذهنیت (Einstellung) او ټولنې (Gesellschaft) لپاره د ځانګړې نغوتې (اشارې) او پاملرنې په موخه نغوتنومځری کارول شوی چې د معین پېژندوییکي په بڼه راغلی دی.

په ټولیزه توګه نغوتنومځري (اشاري ضميرونه) په لاندې توګه اوړون مومي:

| **Kasus** | **Maskulin** | **Feminin** | **Neutral** | **Plural** |
|---|---|---|---|---|
| Nom. | dieser/der<br>derjenige<br>derselbe | diese/die<br>diejenige<br>dieselbe | dieses/das<br>dasjenige<br>dasselbe | diese/die<br>diejenigen<br>dieselben |
| Akk. | diesen/den<br>denjenigen<br>denselben | diese/die<br>diejenige<br>dieselbe | dieses/das<br>dasjenige<br>dasselbe | diese/die<br>diejenigen<br>dieselben |
| Dat. | diesem/dem<br>demjenigen<br>demselben | dieser/der<br>derjenigen<br>derselben | diesem/dem<br>demjenigen<br>demselben | diesen/denen<br>denjenigen<br>denselben |
| Gen. | dieses<br>desjenigen<br>desselben | dieser<br>derjenigen<br>derselben | dieses<br>desjenigen<br>desselben | dieser<br>derjenigen<br>derselben |

د (die, das, der) نغوتومځري (اشاري ضمير) په عامه ژبه کې ډېر کارول کيږي، په ځانګړې توګه:

- چې په نومځري (ضمير) پورې يوه اړيکغونډله (ارتباطي جمله) نښتې وي:

| |
|---|
| Ich möchte die Person sehen, **die** dieses Rätsel lösen kann. |
| زه غواړم چې هغه کس ووينم چې دغه کيسۍ حل کولای شي. |

د (Das) نغوتومځرى (اشاري ضمير) ډېر وخت د غونډلو په پيل يا خبري برخه کې راځي او له اړوند کړ (فعل) سره سم د پښوييز دوی (ګرامري قاعدې) پر بنسټ اوړون نه مومي:

| | |
|---|---|
| **Das ist** dein Schicksal. | دا ستا برخليک (بخت) دی. |
| **Das sind** meine Geschwister. | دا زما خويندې ورونه دي. |

برسېرنې بڼې کولای شي چې د پېژندوييکي (د تعريف توري) په توګه له نوم سره او همدرانګه د نومځرو (ضميرونو) په بڼه په خپلواکه توګه وکارول شي:

| | |
|---|---|
| Welchen Stift möchtest kaufen?<br>کوم قلم غواړې چې واخلې؟<br>**Diesen** Stift möchte ich kaufen.<br>دغه قلم غواړم چې واخلم. | د معين پېژندوييکي (آرتيکل) په بڼه: |
| Welcher Stift gefällt dir?<br>کوم قلم دې خوښيږي؟<br>**Dieser** gefällt mir.<br>دغه مې خوښيږي. | د نغوتومځري (اشاري ضمير) په بڼه: |

هغه نغوتومځري (اشاري ضميرونه) چې د نوم پر ځای راغلي وي، بايد له نغوت وييکي (اشاري توري) څخه توپير شي، ځکه چې نغوتومځري بل ډول اوړون مومي.

## اړیکنومځری (Das Relativpronomen)

اړیکنومځري (ارتباطي ضمیرونه) د نوم پر ځای راځي، د آرې غونډلې (اصلي جملې) د نوم په اړه سرباري مالومات راکوي او مله غونډله (فرعي جمله) پیلوي. د اړیکنومځري نوری (جنس) او شمېر یې په اړوند نوم پورې اړه لري او پېر (حالت) یې د غونډلې (جملې) په کړ (فعل) پورې:

| | |
|---|---|
| Die Frauen, **die** Salsa tanzen, kommen aus Brasilien.<br>کومې/ دا ښځې چې سلسه ناځي (نڅا کوي)، د برازیل دي. | |
| Der Mann, **den** ich fragte, ist mein Kumpel.<br>کوم/ دا سړی چې ما وپوښت، زما ملګری دی. | |
| Das Kind, mit **dem** die Frau wegfuhr, hatte zu viel geweint.<br>کوم/ دا ماشوم چې له ښځې سره له دې ځایه ولاړ، ډېر یې ژړلي وو. | |

په لومړۍ بېلګه (مثال) کې د (die) اړیکنومځری (ارتباطي ضمیر) د نوم (Frauen) پر ځای راغلی او د ده له نوري (جنس)، شمېر او پېر (حالت) سره یې سم اوړون (ګردان) موندلی دی. په دویمه بېلګه کې د (den) اړیکنومځری د نوم (Mann) ځایناستی ګرځېدلی او د ده له نوري (جنس)، شمېر او پېر سره سم یې اوړون (ګردان) موندلی دی. همداسې یې د (dem) اړیکنومځری درواخلئ. هممهال که پام وشي، په ټولو بېلګو کې اړیکنومځري (ارتباطي ضمیر) ملې غونډلې (فرعي جملې) پیلوي او له آرې (اصلي) هغې سره یې اړیکه ټینګوي.

### د (die, das, der) اړیکنومځري

د دغو نومځرو (ضمیرونو) اوړون (ګردان) د معین پېژندوییکي (د تعریف معین توري) په څېر دی، یوازینی توپیر یې هرګوره په تولپېر (اضافي حالت) او د ګڼې (جمع) په لر کړي پېر (باواسطه مفعولي حالت) کې دی چې د (en–) پایتوري خپلوي:

| Kasus | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | der | das | Die | Die |
| **Akk.** | den | das | Die | Die |
| **Dat.** | dem | dem | Der | Denen |
| **Gen.** | dessen | dessen | Deren | Deren |

| | |
|---|---|
| Nom. | Ein Kind, **das** viel zu viel weint, könnte Hunger haben.<br>يو ماشوم چې ډېر ژاړي، کېدای شي چې وږی وي. |
| Akk. | Der Stift, **den** ich dir schenke, kostet 100€.<br>دا قلم چې زه یې تا ته ډالۍ کوم، سل آیرو قیمت لري. |
| Dat. | Ein Mann, **dem** seine Arbeit nicht wichtig ist, ist kein guter Arbeiter.<br>یو سړی، چې خپل کار ور ته اړین نه وي، ښه کارګر نه دی. |
| Gen. | Die Frau, **deren** Handtasche ich fand, kommt aus Russland.<br>دا ښځه چې ما یې لاسي بکس وموند، د روسیې ده. |

د دې لپاره چې په یوه غونډله (جمله) کې مو د معین پېژندوییکي (د تعریف معین توري) او اړیکنومځري (ارتباطي ضمیر) د ناسم پوهاوي مخه نیولې وي، نو ځینې وخت د **(die, das, der)** د اړیکنومځرو (ارتباطي ضمیرونو) پر ځای **(welche, welches, welcher)** هم کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Der Mann, **der** der Frau nachlief…<br>دا سړی (کوم) چې په ښځه پسې ولاړ… | Der Mann, ***welcher*** der Frau nachlief… |
| Die Frau, **der** der Stift gehört…<br>دا ښځه (کومه) چې قلم پرې پورې اړه لري… | Die Frau, ***welcher*** der Stift gehört… |
| Das Kind, **das** das Spielzeug sucht…<br>دا ماشوم (کوم) چې خپل د لوبو سامان لټوي… | Das Kind, ***welches*** das Spielzeug sucht… |

د چوکاټ د کېنې خوا په لومړۍ بېلګه کې پنډ ليکل شوی (der) يو اړيکنومځری (ارتباطي ضمير) دی چې د (Mann) پر ځای راغلی دی او دويم (der) د (Frau) د معين پېژندويېکي (د تعريف معين توري يا آرټيکل) اوړېدلي (ګردان شوې) بڼه ده. دغه معين پېژندويېکی له آره (die) دی او په دغه بېلګه کې په لرکړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) کې راغلی دی او (der) ترې جوړ شوی دی. له همدې امله کېدای شي چې د اړيکنومځري (ارتباطي ضمير) او معين پېژندويېکي (د تعريف معين توري يا آرټيکل) په پېژندلو کې ستونځه يا ناسم پوهاى را منځته شي.

دغه ډول اړيکنومځري (ارتباطي ضميرونه) ډېر په ليکلې ژبه کې کارول کېږي. په ورځينو خبرو اترو کې لږ اوړېدل کېږي. تولپېر (اضافي حالت) هم نه لري. اوړون (ګردان) يې په لاندې توګه دی:

| Kasus | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | welcher | welches | welche | Welche |
| **Akk.** | welchen | welches | welche | Welche |
| **Dat.** | welchem | welchem | welcher | Welchen |

د (wer, was) پوښتويېکي (استفهامي کلمې) هم د اړيکنومځري په توګه کارېدای شي:

| Kasus<br>پېر | Personen<br>وګړي | Dinge<br>څيزونه |
|---|---|---|
| **Nominativ** | wer | Was |
| **Akkusativ** | wen | Was |
| **Dativ** | wem | – |
| **Genitiv** | wessen | Wessen |

د (wer) پوښتويېکی (استفهامي کلمه) د نرينه، ښځينه او منځينه (مخنث) نومونو پر ځای پرته له کوم توپير څخه د اړيکنومځري (ارتباطي ضمير) په توګه راځي، حال دا چې (was) د څيزونو او مانا نومونو پر ځای کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Weißt du, **wer** dir den Brief geschickt hat? | پوهیږې چې دغه لیک چا درته رالیږلی دی؟ |
| Sie versteht nicht, **was** du tust. | دا (ښځه) نه پوهیږي چې ته څه کوې. |
| **Was** du machst, musste ich auch machen. | څه چې ته کوې، باید زه یې هم وکړم. |
| Ich weiß, **wessen** Auto das ist. | زه پوهیږم چې دا د چا موټر دی. |

د **(woher, wohin, wo)** اړیککړولونه (ارتباطي قیدونه) له آره کړولونه (قیدونه) دي. دوی د اړیکنومځرو (ارتباطي ضمیرونو) په څېر مله غونډله (فرعي جمله) پیلوي، خو هممهال د کړول (قید) دنده هم تر سره کوي. دوی د هېوادونو، ښارونو او سیمو له نومونو څخه وروسته راځي:

| |
|---|
| Das ist genau die **Klasse**, ***wo*** ich dich zum ersten Mal sah.<br>دا همغه ټولګی دی چې ما ته د لومړي ځل لپاره پکې ولیدې. |
| Sie ist zurück nach **Kabul** geflogen, **woher** sie eigentlich kommt.<br>دا بېرته کابل ته، اصلاً دکوم ځای چې ده، والوته (پرواز یې وکړ). |
| Lisa fliegt nach **Afghanistan**, **wohin** ihr Vater schon gegangen ist.<br>لیزا افغانستان ته پرواز کوي، هلته چې پلار یې وار له وړاندې تللی دی. |

د **(was)** ټولیز (عمومي) اړیکنومځری (ارتباطي ضمیر) پرته له اوړون څخه کولای شي چې په کړند پېر (فاعلي حالت) او کړي پېر (مفعولي حالت) کې راشي. دی هم د نوم ځایناستی ګرځي او مله غونډله (فرعي جمله) پیلوي:

| | |
|---|---|
| **Nominativ**<br>**کړند پېر** | Du hast ein schönes Kleid, <u>was</u> mich sehr freut.<br>ته یو ښایسته کمیس لرې چې ما ډېر خوشحاله کوي. |
| **Akkusativ**<br>**لند کړی پېر** | Sie hat wieder einen Job, <u>was</u> sie mir gestern erzählt hat.<br>دا (ښځه) بیا یوه نوې دنده لري، څه چې پرون یې ما ته ووې. |

## ناټيکنومځری (Indefinitpronomen)

ناټيکنومځري (مبهم يا نامعين ضميرونه) د يوه ناجوت (نامعين) وګړي يا څيز پر ځای راځي، يا هم د داسې څيز لپاره راځي چې په اړه يې په ټوليزه (عمومي) توګه بايد خبرې وشي، نه په ځانګړې او دقيقه توګه، لکه يو سړی، يو څوک، يو چا. دوی کېدای شي چې په ډېرګړي (جمع) يا يوګړي (مفرد) بڼه سره راشي. په جرمنۍ ژبه کې کېدای شي چې ګڼه (جمع) يې د يوګړي (مفرد) پر ځای راشي او مفرد يې د ګڼې (جمع) پر ځای، خو په دې سره يې مانا نه غلطيږي. د نوري (جنس) له پلوه کېدای شي چې اوړون هم ومومي. اوړون يې هر ګوره داسې دی لکه نوری (جنس) يې چې نرينه وي. ځينې له دوی څخه يوازې راځي چې د ريښتينو ناټيکنومځرو (مبهمو ضميرونو) په نامه هم يادول کېږي، لکه:

Einer, irgendeiner, irgendwer, man, jemand, irgendjemand, jedermann, keiner, niemand, etwas, irgendetwas, nichts, alles, viel, wenig.

| | |
|---|---|
| Irgendeiner muss mich nach Hause fahren. | يو څوک مې بايد کور ته ورسوي. |
| Niemand kann alles erreichen. | هېڅوک نه شي کولای چې هر شي ته ورسېږي. |
| Jedermann muss einen Beruf lernen. | هر سړی بايد يو مسلک زده کړي. |

ځينې يې کولای شي چې له نوم سره د نامعين پېژندويکي (د تعريف نامعين توري يا آرټيکل) په توګه راشي لکه لاندې ناټيکنومځری (مبهم ضمير) :

| | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | einer | ein(e)s | Eine | (welche) |
| **Akk.** | einen | ein(e)s | Eine | (welche) |
| **Dat.** | einem | einem | Einer | (welchen) |
| **Gen.** | eines | eines | Einer | – |

د (einer) ناټيکنومځرى (مبهم ضمير) ګڼه (جمع) نه لري. د ګڼې (جمع) لپاره يې (welche) يا (irgendwelche) راځي. همداسې کېداى شي چې (welche) د داسې يوه شي لپاره راشي چې اندازه يې مالومه نه وي، خو وار له وړاندې په متن يا غونډله کې ياد شوى وي.

| | |
|---|---|
| Ich habe ein Auto.<br>Jeder hat **eins.** | زه يو موټر لرم.<br>هر څوک يو لري. |
| Du kannst **einen** stundenlang beschäftigten. | ته کولاى شې چې يو څوک په ساعتونو بوخت کړې. |
| Sie können **einem** wehtun. | تاسې کولاى شئ چې يو څوک ودردوئ. |
| Nur **einer** tut sowas gutes. | يوازې يو سړى (يوڅوک) داسې ښه کار کوي. |

**د (Niemand, Jemand, Man) ناټيکنومځرو (مبهم ضميرونو) اوړون:**

| **Nom.** | **Man**<br>**سړى (يو څوک)** | **Jemand**<br>**يو سړى** | **Niemand**<br>**هېڅوک** |
|---|---|---|---|
| **Akk.** | **einen** | jemanden | Niemanden |
| **Dat.** | **einem** | jemandem | Niemandem |

لکه څنګه يې چې په برسيرن جدول کې څرګنده شوه، د (man) ناټيکنومځرى (مبهم ضمير) په يوګړې (مفرد) بڼه د کړند (فاعل) په توګه راتلاى شي، خو په لنډ کړې پېر (بې واسطه مفعولي حالت) او لرکړې پېر (با واسطه مفعولي حالت) کې يې ځاى د (einer) ناټيکنومځرى نيسي.

| | |
|---|---|
| **Man** redet nicht schlecht über Leute.<br>سړى په خلکو پسې بد نه غږيږي. | د (Man) ناټيکنومځرى د يوه يا ډېرو هغو وګړو په مانا کارول کېږي چې يا يې په اړه په ټوليزه (عمومي) توګه خبرې کېږي او يا يې په اړه مالومات نه وي. |
| **Jemand** muss diese Arbeit machen. | د (Jemand) ناټيکنومځرى يوازې د يوه نامالوم کس يا يوه نامالوم ګروپ لپاره راځي. |

| | |
|---|---|
| | یو څوک باید هرو مرو دغه کار وکړي. |
| د (Niemand) ناټیکنومځری د (Jemand) هغه منفي بڼه ده. | **Niemand** macht deine Arbeit.<br>هېڅوک ستا کار نه کوي. |

د ځینو ناټیکنومځرو (مبهمو ضمیرونو) د ناټیکوالي (مجهولیت) د غښتلي کولو لپاره سړی کولای شي چي د نومځري (ضمیر) څخه وړاندې د (–irgend) مختاړی راوړي. د بېلګې په توګه:

که چېرې د (wer, einer, etwas, jemand) په مخکې (–irgend) راشي، نو ناټیکوالی یا ابهام یا مجهولیت یې نور هم غښتلی او ډېرېږي:

| | |
|---|---|
| یو چا را ته وویل چي توریېکۍ نه راځي. | Irgendjemand hat mir gesagt, dass Torpekai nicht kommt. |
| زوی ته دې له ځان سره یو شی راوړه. | Bring deinem Sohn irgendetwas mit. |
| یو څوک مې باید کورته یوسي. | Irgendjemand muss mich nach Hause fahren. |

په لمړۍ بېلګه کې د "یو چا" نومځری ناټیک (مبهم) دی. دا چې چا راته وویل، مالومه نه ده. په دویمه بېګله کې "یو شی" ناټیک (مبهم) دی. په دې مانا چې یو شی راوړه، خو دا چې باید څه شی راوړې، ټاکل شوې او مالومه نه ده.  په دریمه بېلګه "یو څوک" ناټیک (مبهم) دی. یو څوک مې باید کور ته یوسي، خو چې څوک مې وړي، ټاکلې او مالومه نه ده. په ټولو بېلګو کې د ناټیکوالي یا ابهام د غښتلي کولو لپاره د (–irgend) مختاړی راغلی دی.

ځیني له ناټیکنومځرو (مبهم ضمیرونو) څخه کېدای شي چې له هغو نومونو سره راشي چې له آره ستاینومونه وي، خو نوم ترې جوړ شوی وي او یا د نوم په توګه راغلي او کارول کېږي:

| | |
|---|---|
| تا ته دې د زېږد ورځ بختوره وي! | Alles Gute zum Geburtstag! |
| ما تا ته لږ خواږه (شی) راوړي دي. | Ich habe dir etwas Süßes geholt. |

په برسېرنو بېلګو کې (Gute, Süße) له آره ستاینومونه (صفتونه) دي، خو د نوم په توګه راغلي دي. که چېرې (viel, wenig, alles) په برسېرنه بڼه (له ستاینوم سره چې د نوم په توګه راغلی وي) راشي، نو اوړون نه مومي. خو که چیرې له نوم سره لکه پېژندوییکی (د تعریف توری یا آرټیکل) راشي، نو باید ګردان شي.

| له نوم کړل شوي ستاینوم سره | له نوم سره |
|---|---|
| Ich habe **viel** Süßes gegessen. | Ich habe **viel*e*** Menschen getroffen. |
| Sie könnte **wenig** Scharfes vertragen. | Sie hat **wenig*e*** Gläser dabei. |
| **Alles** Liebe und Gute zum Eid. | **Alle** Menschen haben gleiche Rechte. |

د ناټیکنومځرو نورې بېلګې په لاندې توګه دي:

Alle, viele, andere–, ein bisschen, andere, jeder, die meisten, kein, verschiedene, mancher, ein paar, mehrere, ein einziger, etliche, wenige, ein jeder, irgendein, ein gewisser, manch einer, beide, einige.

## پوښتنومځری (Das Interrogativpronomen)

پوښتنومځری (استفهامي ضمیر) په یوه پوښتغونډله (استفهامي جمله) کې د هغه نوم پر ځای راځي چې په اړه یې مالومات غواړو. په بله وینا، پوښتنومځری د یوه کړن (عمل)، پېښې، اکر (حالت)، وګړي یا یوه څیز په اړه د پوښتنې لپاره کارول کیږي. په جرمنۍ ژبه کې پوښتنومځري په لاندې ډول دي:

| | | | |
|---|---|---|---|
| Wer? | څوک؟ | Wer ruft an? | څوک زنګ وهي؟ |
| Was? | څه شی؟ | Was möchtest du? | ته څه شی غواړې؟ |
| Wen? | څوک، چا (ته)؟ (لنډکړی پېر) | Wen suchst du? | څوک لټوې؟ |
| Wem? | چا (ته)؟ (لر کړی پېر) | Wem hat sie mein Buch gegeben? | دې (ښځې) زما کتاب چا ته ورکړ؟ |
| Wessen? | د چا؟ | Wessen Buch ist das? | دا د چا کتاب دی؟ |
| welcher | کوم ؟ | Welcher Hund bellt? | کوم سپی غاپي؟ |
| was für ein(er)? | څه ډول؟ | Was für ein Buch ist das? | دا څه ډول کتاب دی؟ |

د (Welche, Welcher, Welches) پوښتنومځري (استفهامي ضميرونه) د دې لپاره کارول کېږي چې له څو څيزونو يا له يوه ټولي (ګروپ) څخه د يوه مالوم يا ټاکلي هغه په اړه وپوښتو. په دغه بېلګه کې غواړو پوه شو چې د کتابونو، کتابچو او کمپيوټرونو په ټولي (ګروپ) کې کوم يو غواړئ، خوښوئ يا ټاکئ.

| | |
|---|---|
| Welches Buch gefällt dir? | کوم کتاب دې خوښېږي؟ |
| Welche Mappe willst du kaufen? | کومه دوسيه غواړې چې وپېرې؟ |
| Welcher Rechner ist defekt? | کوم کمپيوټر خراب دی؟ |

**(was für ein?)** يوه څرګندنه (اصطلاح) ده چې د پوښتنومځري (استفهامي ضمير) په توګه راځي او په ټوليزه (عمومي) توګه د يوه شي د ډول يا رقم د پوښتلو لپاره کارول کېږي. که چېرې بايد اوړون (ګردان) ومومي، يوازې وروستی برخه (ein) يې اوړون مومي. ګڼه (جمع) يې په (welche) سره رغېږي. په لاندې بېلګو کې غواړو چې په ټوليزه توګه د کمپيوټر او فابريکو په ډول او رقم پوه شو.

| | |
|---|---|
| Singular<br>یو ګړی (مفرد) | Was für einen Computer möchtest du?<br>څه ډول کمپیوټر غواړې؟ |
| Plural<br>ګڼه (جمع) | Was für welche Fabriken gibt es hier?<br>څه ډول فابریکې دلته شته دي؟ |

د **(was für ein)** اوړون:

| | Maskulin | Neutral | Feminin | Plural |
|---|---|---|---|---|
| **Nom.** | was für einer | was für ein(e)s | was für eine | was für welche |
| **Akk.** | was für einen | was für ein(e)s | was für eine | was für welche |
| **Dat.** | was für einem | was für einem | was für einer | was für welchen |
| **Gen.** | was für eines | was für eines | was für einer | was für welcher |

**بېلګې:**

| | |
|---|---|
| Hier steht ein Beamter.<br>دلته یو مامور ولاړ دی. | Was für **einer**?<br>څه ډول (مامور)؟ |
| Ich suche einen Stift.<br>زه یو قلم لټوم. | Was suchst du für **einen**?<br>څه ډول (قلم) لټوې؟ |
| Dieter hat ihr ein Auto gekauft.<br>دیټر دې (ښځې) ته یو موټر واخیست. | Was für **eins**?<br>څه ډول (موټر)؟ |
| Sie hat einem Mann das Leben gerettet.<br>دې (ښځې) یوه سړي ته ژوند وژغوره. | Was für **einem**?<br>څه ډول (سړي) ته؟ |

| | |
|---|---|
| Er hat die Halskette einer Frau gefunden.<br>ده د یوې ښځې د غاړې ځنځیر پیدا کړی دی. | Was für **einer**?`<br>د کومې یا څه ډول (ښځې)؟ |
| Draußen liegen so viele Bücher.<br>د باندې ډېر کتابونه پراته دي. | Was für welche?<br>څه ډول کتابونه؟ |

## غبرګون نومځری (Das Reflexivpronomen)

غبرګون نومځری (انعکاسي ضمیر) هغه نومځری دی چې د یوه کړ (فعل) هم کړند (فاعل) وي او هم يې کړی (مفعول). دوی له نومونو یا ځانګړنومځرو (شخصي ضمیرونو) سره د "**ځان**" په ملګرتیا کولو لاسته راځي. که ووایو چې: انارګل ځان ژوبل کړ.

په برسېرنه بېلګه کې انارګل هم کړند (فاعل) دی او هم کړی (مفعول). په دې مانا چې د ده خپل کړن (عمل) بېرته ده ته ور ګرځي او اغېزه يې پر ده لوېږي. که ووایو چې سپن ګل ځان پرېمینځي. دلته هم سپین ګل د خپل کړ (فعل) هم کړند (فاعل) دی او هم يې کړی (مفعول).

په جرمنۍ ژبه کې غبرګون نومځري (انعکاسي ضمیرونه) یوازې دوې بڼې لري. یوه بڼه يې د لنډکړي پېر (بې واسطه مفعول) او بله هغه يې د لر کړي پېر (با واسطه مفعول) ده.

| | ich | du | er/sie/es | Wir | ihr | sie/Sie |
|---|---|---|---|---|---|---|
| **Akk.** | mich | dich | sich | Uns | euch | Sich |
| **Dat.** | mir | dir | sich | Uns | euch | Sich |

د لومړي او دویم وګړي بڼه يې د ځانګړنومځرو (شخصي ضمیرونو) په څېر ده، حال دا چې د دریم وګړي (شخص) بڼه يې د (sich) په راوړلو سره جوړېږي.

| | |
|---|---|
| Ich dusche mich. | زه ځان مینځم. |
| Du verletzt dich. | ته خپل ځان ټپي کوي. |

| | |
|---|---|
| Er putzt sich die Zähne. | دی خپل غاښونه پاکوي. |
| Wir kennen uns. | موږ یو بل سره پیژنو. |
| Sie  ziehen sich schön an. | تاسې ښکلي کالي اغوندئ. |
| Ihr macht euch große Mühe. | تاسې ځان ته ډیر زحمت ورکوئ. |
| Sie waschen sich. | دوی خپل ځانونه مینځي. |

## کړ (Das Verb)

کړ (فعل) د زمانې په چوکاټ کې د یوه شي یا اکر (حالت) یا هم د یوه کړن (عمل) استنه څرګندوي. یا په بله او لنډه وینا: **کړ (فعل) په یوه مهال (زمانه) کې د یوه کار کولو ته وايي.**

په جرمنۍ ژبه کې کابو (تقریباً) د ټولو کړونو (فعلونو) کړنومی (مصدر) په (en−) او ځینې هغوی یې یوازې په (n−) سره پای ته رسیږي:

red**en**, schlaf**en**, handel**n**

که چېرې له برسېرنو بېلګو څخه (en−) یا (n−) لرې کړو، نو پاتې برخې ته د کړ (فعل) سته وايي:

red−, schlaf−, handel−

د یوه کړ (فعل) د پای په پام کې نیولو سره، کړ (فعل) په دوه ډوله دی :

**ناوړېدونی (چې نه وي ګردان شوی) (Infinitives Verb)** : نه کومه وګړیزه پایله لري او نه خپلواک وي لکه د اوس او تېرمهال بېلګې:

sprechen, gesprochen haben

همداسې لومړی کړ ستاینوم (Partizip I) او دویم هغه (Partizip II):

sprechend, gesprochen

**اوړېدونی کړ (ګردان شوی فعل) (Finites Verb):** هم وګړيز پای لري او هم په غونډله کې د خبر (اېښوني) چار تر سره کوي. دوی د وګړي، نوري (جنس)، شمېر او پېر (حالت) په پام کې نيولو سره اوړون (ګردان) مومي.

| | |
|---|---|
| Ich **schreib*e*** meiner Freundin einen Brief. | زه خپلې ملګرې ته يو ليک ليکم. |

**کړ (فعل) د مانا او ځانګړتيا پر بنسټ** په درې ډوله دی:

| | |
|---|---|
| Anaargul **liest** ein Buch. (Handlungsverben) | انارګل يو کتاب لولي. (کړن، چار) |
| Die Blätter **fallen**. (Vorgangsverben) | پاڼې توييږي. (پېښېدل) |
| Nicole **liegt** in der Sonne. (Zustandsverben) | نيکول په لمر کې پرته ده. (حالت) |

**کړ (فعل) د چار او دندې پر بنسټ:**

**مرستيال کړ (Hilfsverb) :**

مرستيالکړ (کمکي فعل) له بشپړ يا اصلي کړ (فعل) سره د بيلابېلو مهالونو او ځينو ځانګړو پښوييزو (ګرامري) څرګندنو (اصطلاحاتو) په جوړولو کې مرسته کوي. لاندې بېلګې په بېلابېلو مهالونو (زمانو) کې د (sein, haben, werden) مرستيالکړونو (کمکي فعلونو) په مرسته جوړې شوې دي.

| | |
|---|---|
| Ich **bin** nach Hause gekommen. | زه کور ته راغلی يم. |
| Ich **habe** ein Buch gekauft. | ما يو کتاب پېرلی دی. |
| Ich **werde** Medizin studieren. | زه به طب (فاکولته) ولوم. |

د بيلابېلو مهالونو (زمانو) او بېچار کړ (Passiv) لپاره د (sein, werden, haben) مرستيالکړونه (کمکي فعلونه) کارول کېږي.

د **(Haben)** مرستیالکړ (کمکي فعل) اوړون:

| | Präsens<br>وسمهال | Präteritum<br>بېشېړ تېرمهال | Konjunktiv I<br>لومړی ناخبري | Konjunktiv II<br>دویم ناخبري |
|---|---|---|---|---|
| ich | habe | hatte | Habe | Hätte |
| du | hast | hattest | Habest | Hättest |
| er/sie/es | habe | hatte | Habe | Hätte |
| wir | haben | hatten | Haben | Hätten |
| ihr | habt | hattet | Habet | Hättet |
| sie/Sie | haben | hatten | Haben | Hätten |

د **(sein)** مرستیالکړ (کمکي فعل) اوړون (ګردان) :

| | Präsens<br>وسمهال | Präteritum<br>بشپړ تېرمهال | Konjunktiv I<br>لومړی ناخبري | Konjunktiv II<br>دویم ناخبري |
|---|---|---|---|---|
| ich | bin | war | Sei | Wäre |
| du | bist | warst | sei(e)st | wär(e)st |
| er/sie/es | ist | war | Sei | Wäre |
| wir | sind | waren | Seien | Wären |
| ihr | seid | wart | sei(e)t | wär(e)t |
| sie/Sie | sind | waren | Seien | Wären |

د **(werden)** مرستیالکړ (کمکي فعل) اوړون (ګردان):

| | Präsens<br>وسمهال | Präteritum<br>بشپړ تېرمهال | Konjunktiv I<br>لومړی ناخبري | Konjunktiv II<br>دویم ناخبري |
|---|---|---|---|---|
| **ich** | werde | wurde | werde | Würde |
| **du** | wirst | wurdest | werdest | Würdest |
| **er/sie/es** | wird | wurde | werde | Würde |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| **wir** | werden | wurden | werden | Würden |
| **ihr** | werdet | wurdet | werdet | Würdet |
| **sie/Sie** | werden | wurden | werden | Würden |

**دودتاکی کړ (Modalverb):**

دودتاکی کړ (مودال فعل) هغه کړ (فعل) ته وايي چې د يوې پېښې اړتيا او شونتيا (امکان) يا يې د خرنګوالي آړونه (شرايط)، دول او طريقه ځرګندوي چې څنګه پېښ شو، لکه په لاندې بېلګو کې:

| | | |
|---|---|---|
| Dürfen | Du **darfst** nach Hause gehen. | ته **اجازه** لرې چې کور ته ولاړ شې. |
| Können | Er **kann** Spanisch sprechen. | دی **کولای** شي چې اسپانوي وغږېږي. |
| Sollen | Ich **soll** was essen. | **ښايي** چې زه يو څه شی وخورم. |
| Müssen | Sie **müssen** gehen. | تاسې **بايد هرو مرو** ولاړ شئ. |
| Wollen | Sie **will** ein Auto kaufen. | دا (ښځه) **غواړي** چې يو موټر وپېري. |
| Mögen | Wir mögen nach Hause gehen. | موږ (دا) خوښوو چې کور ته ولاړ شو. |
| Möchten | Ich möchte ein Haus kaufen. | زه غواړم چې يو کور وپېرم. |

**د دودتاکو کړونو (مودال فعلونو) مانا:**

| | |
|---|---|
| Wollen (غوښتل، په زور وي که په خوښه) | Ich **will** heute Schwimmen gehen. |
| Sollen (ښايېدل) | Du **solltest** was essen. |
| Müssen (هرو مرو، بايد) | Sie **müssen** heute arbeiten. |
| Können (توان) | Sie **kann** mich anrufen. |
| Dürfen (اجازه درلودل) | Er **darf** ein Eis essen. |
| Mögen (خوښېدل) | **Mögen** Sie ein Kaffee? |
| Möchten (غوښتل) | Was **möchtest** du kaufen? |

کله چې دودتاکی کړ له بشپړ کړ سره یو ځای راشي، بشپړ کړ د کړنومي (مصدر) په بڼه راځي.

| | |
|---|---|
| Sie **möchte** einen Computer kaufen.<br>دا (ښځه) غواړي چې یو کمپیوتر وپېري. | Ich **kann** schwimmen.<br>زه کولای شم چې ولامبم (لامبو ووهم). |

په لنډ تېرمهال کې دودتاکی کړ د (haben) له مرسیتالکړ سره د کړنومي (مصدر) په بڼه څرګندېږي:

| | |
|---|---|
| ما کولای شوی چې تا ته مالومات درکړم. | Ich habe dir Bescheid geben **können**. |

په برسېرنه بېلګه کې دودتاکی کړ (können) د کړنومي په توګه راغلی او اوړون نه مومي.

دودتاکی کړ (مودال فعل) کولای شي چې یوازې او پرته له کوم بل کړ (فعل) څخه هم راشي:

| | |
|---|---|
| زه دا کولای شم. | Ich **kann** das. |
| تاسې دغه (څه) غواړئ. | Sie **wollen** das. |

د (müssen) دودتاکی کړ (مودال فعل) په خپله منفي بڼه نه لري، خو له (brauchen… nicht) سره رغېدای شي او د کړ (فعل) څخه وراندې (zu) ور ډېرېږي:

| | |
|---|---|
| Nein, ich **<u>brauche nicht</u>** nach Hause **<u>zu</u>** gehen.<br>نه، زه مجبور نه یم چې کور ته ولاړ شم. | Du musst nach Hause gehen.<br>ته باید هرو مرو کور ته ولاړ شې. |

دودتاکی کړ (مودال فعل) کېدای شي چې د ګومان د څرګندولو لپاره هم وکارول شي:

| |
|---|
| Anaargul ist nicht gekommen. Er **muss** krank sein.<br>انار ګل نه دی راغلی. دی به هرو مرو ناروغ وي. |

په دې بېلګه کې د انارګل په باره کې ګومان څرګند شوی دی. انارګل هر وخت راځي، خو نن چې نه دی راغلی، داسې ګومان کېږي چې دی به هرو مرو ناروغ وي.

| |
|---|
| Spingul hat graue Haare. Er **muss** jetzt 45 Jahre alt sein.<br>سپین ګل برګ وېښتان لري . ګومان کېږي چې دی به هرو مرو یا کېدای شي چې 45 کلن وي. |
| Die Kinder haben gegessen. Sie **dürfen** schon spielen gehen.<br>ماشومانو ډوډۍ خوړلې دي. دوی اجازه لري، یا ګومان کېږي چې کولای شي چې لوبو ته ولاړ شي. |

که چېرې په یوه غونډله (جمله) کې دودتاکی کړ (موډال فعل) له بېچار (Passiv) هغه سره یو ځای راشي، نو دودتاکی کړ په غونډله کې اوړون مومي او له کړند (فاعل) څخه وروسته راځي:

| |
|---|
| Das weinende Kind **sollte** als Erster untersucht werden.<br>دا ژړاند ماشوم باید تر ټولو لومړی وکتل (معاینه) شي. |

**د دودتاکو کړونو (موډال فعلونو) اوړون:**

د دودتاکو کړونو وسمهال او بشپړ تېرمهال د نورو مهالونو (زمانو) په پرتله ډېر کارول کېږي.

| **Präsens Indikativ – د وسمهال خبري انشايي** | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | **wollen** | **sollen** | **müssen** | **dürfen** | **können** | **möchten** | **mögen** |
| **Ich** | will | soll | muss | darf | kann | möchte | mag |
| **Du** | willst | sollst | musst | darfst | kannst | möchtest | magst |
| **Er/sie /es** | will | soll | muss | darf | kann | möchte | mag |
| **Wir** | wollen | sollen | müssen | dürfen | können | möchten | mögen |
| **Ihr** | wollt | sollt | müsst | dürft | könnt | möchtet | mögt |
| **Sie/sie** | wollen | sollen | müssen | dürfen | können | möchten | mögen |

| Präteritum Indikativ – د بشپړ تېرمهال خبري انشايي | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | **wollen** | **sollen** | **müssen** | **dürfen** | **können** | **möchten** | **mögen** |
| **Ich** | wollte | sollte | musste | durfte | konnte | möchte | mochte |
| **Du** | wolltest | solltest | musstest | durftest | konntest | möchtest | mochtest |
| **Er/sie /es** | wollte | sollte | musste | durfte | konnte | möchte | mochte |
| **Wir** | wollten | sollten | mussten | durften | konnten | möchten | mochten |
| **Ihr** | wolltet | solltet | musstest | durftet | konntet | möchtet | mochtet |
| **Sie/sie** | wollten | sollten | mussten | durften | konnten | möchten | mochten |

| Partizip II – دويم كړ ستاينوم | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| gewollt | gesollt | gemusst | gedurft | Gekonnt | gewollt | gemocht |
| **Konjunktiv II – دويم انشايي** | | | | | | |
| wollte | sollte | müsste | dürfte | Könnte | wollte | möchte |

**بشپړكړ (Vollverb) :**

هغه كړ (فعل) ته وايي چې كولای شي يوازې په خپله په غونډله كې خبر (اېښونى) جوړ كړي. په دې مانا چې د مرستيالكړ (كمكي فعل) په توګه آركړ (اصلي فعل) ته اړتيا و نه لري:

| | |
|---|---|
| Ich **lache**. | زه خاندم. |
| Anaargul **liest** ein Buch. | انارګل يو كتاب لولي. |
| Sie **spricht** Deutsch. | دا (ښځه) جرمني خبرې كوي. |

په برسېرنو بېلګو كې (lachen, lesen, sprechen) د غونډلې خبر (Prädikat) جوړوي، د غونډلې بشپړه مانا وړاندې كوي او مرستيالكړ (كمكي فعل) ته هيڅ اړتيا نه لري. كه چېرې ووايو چې:

| | |
|---|---|
| Sie hat einen Roman geschrieben. | دې (ښځې) يو رومان ليکلی دی. |

په برسېرنه بېلګه کې خبر (Prädikat) له (hat... geschrieben) څخه جوړ شوی دی چې د مرستيالکړ (کمکي فعل) په مرسته سره رغېدلی. له همدې امله د (schreiben) کړ (فعل) په برسېرنه غونډله (جمله) کې بشپړ کړ نه دی.

## کړ اوړون (Die Konjugation)

کړ (فعل) د وګړي (زه، ته، دی، موږ)، شمېر (مفرد، جمع) او مهال (وسمهال، بشپړ تېرمهال، راتلونکې)، دود (اخباري، انشايي، امري) او نوري (جنس) پر بنسټ اوړون (ګردان) مومي.

وسمهال (Präsens)، تېرمهال (Präteritum)، لومړی انشايي (Konjunktiv I)، دويم انشايي (Konjunktiv II) او امري (Imperativ) د کړ ساده بڼې دي. نورې بڼې يې له يوه مرستيالکړ (کمکي فعل) او د بشپړ کړ له ناوړېدلې بڼې (چې ګردان شوې نه وي) سره جوړېږي.

| | | |
|---|---|---|
| Präsens | Ich **lese** ein Buch. | زه يو کتاب لوم. |
| Präteritum | du **last** ein Buch. | تا يو کتاب ولوست. |
| Konj. I | Sie **habe** ein Buch **gelesen**. | ګواکي دې يو کتاب لوستلی دی. |
| Konj. II | ich wünschte, ich **hätte** ein Buch. | دريغه چې ما يو کتاب درلودلای. |
| Imperativ | **Lesen** Sie ein Buch! | يو کتاب ولولئ! |

### وګړيز پای (Die Personalendungen)

کله چې يو کړ (فعل) ګردان شي او د يوه وګړي لپاره يې پای تغير ومومي، نو دغه پای ته وګړيز پای وايي. په وسمهال (حال زمانه) کې د کړ (فعل) وګړيز پای په لاندې توګه دی:

| | | |
|---|---|---|
| Ich | schreibe | –**e** |
| du | schreibst | –**st** |
| er/sie/es | schreibt | –**t** |
| Wir | schreiben | –**en** |
| Ihr | schreibt | –**t** |
| Sie/sie | schreiben | –**en** |

برسېرن وګړيز پای د مودال کړ (دودتاکي فعل) او د (Wissen, Sein) کړونو (فعلونو) لپاره نه راځي.

په کړاوړون (فعلي ګردان) کې ځيني وخت يو څه بدلونونه رامنځته کېږي:

په وسمهال کې د ځينو کړونو (فعلونو) د ستې خپلواک (د فعل د ستې واول) د دويم او دريم يوګړي (مفرد) وګړي لپاره له (e–) څخه په (i–) بدلون مومي:

| | | |
|---|---|---|
| Ich spr<u>**e**</u>che: | du spr<u>i</u>chst. | er spr<u>i</u>cht. |

همداسې د (a) واول (خپلواک) په (ä) اوملوت (Umlaut) بدلون مومي:

| | | |
|---|---|---|
| Ich tr<u>**a**</u>ge: | du tr<u>**ä**</u>gst. | er tr<u>**ä**</u>gt. |

هغه کړونه چې سته يې په (el–/er–) پای ته ورسېږي، (e–) په لومړي يوګړي (مفرد) وګړي کې غورځي:

| | |
|---|---|
| läch<u>**e**</u>ln. | ich lächle |

# کمزوري، غښتلي او کډ کړونه

# Schwache, Starke und Gemischte Verbformen

### کمزوري کړونه (Schwache Verben):

د کمزوري کړ (فعل) سته واولي بدلون نه مومي، بشپړ تېر مهال يې په (te–) سره او دويم کړ ستاينوم (Partizip II) يې د (–ge) په مختاړي او د (–t) په پايتوري سره جوړېږي. دوی سمدودي (با قاعده) هم بلل کېږي.

| Verb | Präteritum | Partizip II |
|---|---|---|
| kaufen | kauf–**te** | **ge**–kauf–**t** |
| lachen | lach–**te** | **ge**–lach–**t** |

### غښتلي کړونه (Starke Verben):

د دوی سته په بشپړ تېرمهال او دويم کړ ستاينوم (Partizip II) کې نه يوازې واولي بدلون مومي، بلکې همدارنګه په دويم کړ ستاينوم کې د (en) پايتوري هم اخلي. دوی بې قاعده هم بلل کېږي.

| | Präteritum | Partizip II |
|---|---|---|
| spr<u>e</u>chen | spr<u>a</u>ch | **Ge**sproch<u>**en**</u> |

غښتلي کړونه د خپل واولي بدلون (Ablaut) پر بنسټ په درې ډوله دی:

| | |
|---|---|
| **Spr<u>e</u>chen:**<br>spr<u>a</u>ch, gespr<u>o</u>chen | – چې سته يې درې ډوله واولونه (خپلواک) ولري : |
| **Schr<u>ei</u>ben:** | – چې دوه ډوله خپلواک (واولونه) ولري: |

| | |
|---|---|
| schr**<u>ie</u>**b, geschr**<u>ie</u>**ben | |
| **Les<u>e</u>n:**<br>l<u>a</u>s, gel<u>e</u>sen | – چې د بشپړ تېر مهال واول (Vokal Präteritum)<br>او دويم کړ ستاينوم (Partizip II) يې دوه ډوله واولونه ولري. |

**کډ کړونه (Gemischte Verben)**

دغه ډول کړونه (فعلونه) هم د کمزورو او هم د غښتليو کړونو ځانګړتياوې لري. دوی د خپلې ستې واول په بشپړ تېرمهال (Präteritum) او دويم کړستاينوم (Partizip II) کې بدلوي. په بشپړ تېرمهال او دويم کړستاينوم کې يې پای د کمزورو کړونو (فعلونو) په څېر دی. په دې مانا چې د غښتليو هغوی په څېر د ستې بېلابېل واولونه (خپلواک) لري، خو په بشپړ تېر مهال کې د کمزورو کړونو (فعلونو) په څېر د (–te–) او په دويم کړ ستاينوم (Partizip II) کې د (–t) پايتوری خپلوي:

| Verben | Präteritum | Partizip II |
|---|---|---|
| nennen | nann**<u>te</u>** | **ge**nann**<u>t</u>** |
| denken | dach**<u>te</u>** | **ge**dach**<u>t</u>** |

**وېشوړ او ناوېشوړ کړونه (Trennbare und Untrennbare Verben):**

په جرمنۍ ژبه کې کېدای شي چې په يوه کړ (فعل) يو مختاړی (Präfix) ور ډېر شي او په دې سره يې مانا په بشپړه توګه بدلون ومومي. دغه مختاړی له ځينو کړونو (فعلونو) سره يو ځای او له ځينې هغوی څخه جلا ليکل کېږي. د مختاړي جلا يا يو ځای ليکل په خپله په مختاړي پورې اړه لري، خو په ټوليزه (عمومي) توګه داسې ويل کېدای شي چې هغه کړونه چې مختاړي يې په خج (فشار) سره وويل يا ولوستل شي، جلا ليکل کېږي او د وېشوړ (جلا کېدو وړ) کړونو (فعلونو) په نامه يادېږي. هغوی چې مختاړي يې پرته له خج (فشار) څخه ويل کېږي، مختاړی (پېشوند) ور سره يو ځای ليکل کېږي او د ناوېشوړ کړونو (د نه جلا کېدو وړ فعلونو) په نامه يادېږي. وېشوړ (د جلا کېدو وړ) مختاړي يا پېشوندونه (Präfix) په لاندې توګه دي:

ab–, aus–, los–, vor–, da–, hin–, an–, bei–, mit–, weg–, daran–, auf–, ein–, nach–, zu–, darauf–, hinauf–, herauf–,

هغه کړونه چې د برسېرنو مختاړیو درلودونکي دي، په تولو ساده مهالونو (زمانو) کې– پرته له ځیرمه یا فرعي غونډلو څخه– د مختاړي او دویم کړستاینوم (Partizip II) تر منځ د (–ge–) منځتاړی خپلوي:

| | | |
|---|---|---|
| **An**rufen | Ich **rufe** dich **an.** | Ich habe dich an**ge**rufen. |

هغه کړونه (فعلونه) چې مختاړی (Präfix) یې په خج (فشار) سره و نه لوستل یا تلفظ نه شي، له خپل اړوند کړ (فعل) سره یو ځای راځي او د ویش وړ نه دي. دغه مختاړي په لاندې توګه دي:

- be–, emp–, ent–, er–, ge–, miss–, ver–, zer–

| | | |
|---|---|---|
| belügen | Du hast mich **be**logen. | تا ما ته دروغ ووې. |
| missverstehen | Ich habe dich **miss**verstanden. | زه ستا په موخه پوه نه شوم. |

په برسېرنو بېلګو کې (be) له (logen) څخه او (miss) له (verstanden) څخه جلا نه شي لیکل کېدای. دوی د دویم کړستاینوم (Partizip II) په بڼه کې د مختاړي (Präfix) او کړ (فعل) تر منځ د (–ge–) منځتاړی نه خپلوي.

| | |
|---|---|
| Ich **be**stehe die Prüfung.<br>زه په آزموینه کې بریالی کېږم. | Ich habe die Prüfung **be**standen.<br>زه په آزموینه کې بریالی شوم. |

ځینې مختاړي (Präfix) شته چې هم له کړ (فعل) سره یو ځای او هم ترې جلا لیکل کېدای شي. که له کړ سره یو ځای ولیکل شي، یوه مانا لري، خو که ترې جلا ولیکل شي، بله مانا ورکوي.

durch–, hinter–, über–, unter–, um–,

| جلا ليکل | يو ځای ليکل |
|---|---|
| Er **fuhr** das Schild **um.**<br>ده (موټروان) ترافيکي اشاره ووهله. | Er **umfuhr** das Schild.<br>دی له ترافيکي اشارې څخه په څنګ تېر شو. |
| Sie **redet über** dich.<br>دا د تا په باره کې خبرې کوي. | Sie will dich **überreden.**<br>دا غواړي چې تا رضا کړي. |
| Ich **fahre** bis zur Stadt **durch.**<br>زه تر ښاره پورې پرته له درېږ څخه سيده ځم. | Die Angst **durchfährt** dich nicht.<br>وېره اغېزه نه درباندې کوي. |
| **Grab** deine Arroganz **unter!**<br>خپل کبر پټ (خښ) کړه. | Sie **untergräbt** deinen Ruf.<br>دا تا بدنامه کوي. |
| Du musst **hinter** mir **gehen.**<br>ته بايد زما شاته (په ما پسې) ولاړ شې. | Du hintergehst mir.<br>ته ما غولوې (چل را سره کوې). |

# مهال (Das Tempus)

د دې لپاره چې پوه شو چې يو کړ (فعل) څه وخت پېښ شوی يا څه وخت پېښېږي، اړينه ده چې په يوه مهال (زمانه) کې يې څرګند کړو. کړ (فعل) کېدای شي چې په بېلابېلو مهالونو (زمانو) کې راشي، خو د دود (mood) له پلوه په درې ډوله دی:

**خبري (Indikativ)** : د کړ (فعل) دغه بڼه يوازې د يوه څيز شتون، يوه وينا يا يو حقيقت په وسمهال (Präsens)، تېرمهالونو (Präteritum, Perfekt, Plusquamperfekt)، او وسترمهالونو يا راتلونکې زمانو (Futur I, Futur II) کې څرګندوي.

| | | |
|---|---|---|
| **Präsens** | Ich gehe nach Hause. | زه کور ته ځم. |
| **Präteritum** | Ich fand einen Laptop. | ما يو لپټاپ وموند. |
| **Perfekt** | Ich habe ein Buch gelesen. | ما يو کتاب لوستلی دی. |
| **Plusquamperfekt** | Ich hatte dich informiert. | ما ته خبر کړی وې. |

| | | |
|---|---|---|
| **Futur I** | Ich werde dich anrufen. | زه به تا ته تیلیفون وکړم. |
| **Futur II** | Ich werde meine Aufgaben gemacht haben. | ما به خپله دنده کړې وي. (سر ته رسولې وي) |

**ناخبري (Subjunktiv)**: د کړ (فعل) دغه بڼه د یوه څیز اړوتې (شرطي)، ګوماني، ارماني او توانې بڼه څرګندوي.

| | |
|---|---|
| Wenn ich Geld **hätte**, **würde** ich eine Schule bauen. | که مې روپۍ درلودای، نو یو ښوونځی به جوړ کړم. |

**امري (Imperativ)** : د امر کولو لپاره کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Warten Sie! | تم شئ! |
| Geh zur Schule | ښوونځي ته ولاړ شه! |

**وسمهال (Das Präsens)**:

وسمهال (حال زمانه) د هغه کړن (عمل) د څرګندولو لپاره کارول کېږي چې د خبرو کولو یا په حال وخت کې پېښېږي یا تر سره کېږي.

| | |
|---|---|
| Ich mache jetzt einen Spaziergang. | زه اوس قدم وهم. |

په همدې توګه:

| | |
|---|---|
| **Morgen** gehe ich nach Wardak. سبا وردکو ته ځم. | که له وسمهال سره یو ټاکلی وخت وکارول شي، راتلونکې پېښې څرګندوي. |

| | |
|---|---|
| Afghanistan **liegt** in Asien.<br>افغانستان په آسیا کې پروت دی. | وسمهال د یوه ټولیز (عمومي) اکر (حالت)<br>یا حقیقت د څرګندولو لپاره هم کارول کیږي. |
| Präsident Ghani **kommt** nach Deutschland.<br>ولسمشر غني جرمني ته راځي. | په ورځپاڼو کې سرلیک په وسمهال کې رغیږي. |
| Du machst deine Hausaufgabe!<br>ته خپله کورنۍ دنده کوي (وکړه)! | په وسمهال کې کېدای چې امري غونډله (جمله)<br>هم ورغيږي. |

## بشپړ تېرمهال (Das Präteritum)

بشپړ تېرمهال تېر شوی چار (عمل یا کړن) څرګندوي او په لیکوالۍ (کیسې، داستان، راپور او خبر) کې ډېره کارول کیږي. کمزوري کړونه (فعلونه) د (–te–) پایتوري او غښتلي هغوی د خپلې ستې خپلواک (واول) ته بدلون ورکوي:

| | Schwaches Verb | Starkes Verb | Gemischtes Verb |
|---|---|---|---|
| | **lernen** | **sehen** | **denken** |
| ich | lernt**e** | sah | dachte |
| du | lern**test** | sahst | dachtest |
| er/sie/es | lern**te** | sah | dachte |
| wir | lern**ten** | sahen | dachten |
| ihr | lern**tet** | saht | dachtet |
| sie/Sie | lern**ten** | sahen | dachten |

په همدې توګه د (haben, Sein) کړونه (فعلونه) د بشپړ کړ (فعل) او دودتاکي کړ (مودال فعل) په بڼه په بشپړ تېرمهال (مطلقه تېره زمانه) کې ډېر کارول کیږي. همدارنګه د (Es gibt...) څرګندونه (اصطلاح) هم په عامه ژبه کې په بشپړ تېرمهال کې رغیږي.

| **sein** | |
|---|---|
| Ich war gestern im Kino. | زه پرون په ننداري (سینما) کې وم. |
| Du warst letztes Jahr in Kabul. | ته تېر کال په کابل کې وې. |
| Er/sie/es war krank. | دی یا دا ناروغ وو/وه. |
| Wir waren froh. | موږ خوښ وو. |
| Ihr wart nicht interessiert. | تاسې لېواله نه وئ (واست). |
| Sie/sie waren sehr müde. | تاسې (شما) ډېر ستړي وئ (واست).<br>دوی ډېر ستړي ول. |
| Es gab mal ein Laden da drüben. | یو وخت هلته یوه هټۍ وه. |

| **haben** | |
|---|---|
| Ich hatte gestern keine Zeit. | ما پرون وخت نه درلود. |
| Du hattest ein Auto. | تا یو موټر درلود. |
| Er/sie/es hatte eine rote Jacke. | ده یا دې یوه سره کورتۍ درلوده. |
| Wir hatten viel Arbeit. | موږ ډېر کار درلود. |
| Ihr hattet es eilig. | تاسې بیړه درلوده. |
| Sie/sie hatten keine Bücher. | تاسې (شما) کتابونه نه دلودل.<br>دوی کتابونه نه درلودل. |

بشپړ تېرمهال د سیده او ناسیده وینا د نکل لپاره هم کارول کېږي:

| | |
|---|---|
| Sie **fragte** mich, ob ich sie begleiten kann. | دې وپوښتم که چېرې یې بدرګه کړای شم. |

## لنډ تېرمهال (Das Perfekt)

لنډ تېرمهال (ماضي قريب) د هغه چار (عمل يا کړن) د ښرګندولو لپاره کارول کېږي چې په لنډ تېر وخت کې سر ته رسېدلی او تر وسمهال راغځېدلی وي، يا يې اغېزه او پايله تر وسمهال پورې را رسېدلې وي او يا هم په وسمهال کې د يادښت او اهميت وړ وي. لکه: ما ډوډۍ خوړلې ده.

دلته د ډوډۍ د خوړلو اغيزه مړښت ده يا د نورې ډوډۍ له خوړلو څخه انکار دی. په عامه ژبه کې لنډ تېرمهال ډېر کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Ich habe dich zwei Mal angerufen. | ما تا ته دوه ځلې تيليفون کړی دی. |
| Sie ist nach Kabul geflogen. | دا (ښځه) کابل ته الوت (پرواز) کړی دی. |
| Wir haben uns vertragen. | موږ سره سلا شوي (سوله مو وکړه) يو. |
| Du bist Arzt geworden. | ته ډاکتر شوی يې. |
| Sie haben auf uns gewartet. | دوی موږ ته تم شوي دي. |

ځينې وخت لنډ تېرمهال کېدای شي چې د دويم وسترمهال (Futur II) پر ځای هم وکارول شي.

| |
|---|
| In einem Monat habe ich das Buch fertig geschrieben. |
| په يوه مياشت که به مې (ټول) کتاب ليکلی وي. |

لاندې کړونه (فعلونه) خپل لنډ تېر مهال له **(haben)** سره جوړوي:

| | |
|---|---|
| Ich habe **ein Glass Tee** getrunken.<br>ما يو ګيلاس چای څښلی دی. | ټول ليږند (Transitiv) کړونه (هغه فعلونه چې په لنډ کړي پېر کې يو کړی يا مفعول ولري). |
| Sie hat den **ganzen Tag** gekocht.<br>دې ټوله ورځ پخلی کړی دی. | ټول ناليږند (Intransitiv) کړونه (چې په لنډ کړي پېر کې مفعول و نه لري) چې د يوې پېښې بهير ښرګندوي. |

| | |
|---|---|
| Er hat **sich gewaschen.**<br>ده خپل ځان پرېمیځلی دی. | له غبرګون کړونو (انعکاسي فعلونو) سره |
| Du hast mich einladen **können.**<br>تا کولای شوئ چې ما را وبولې. | له دودتاکو (مودال) مرستیالکړونو سره |

لاندې کړونه (فعلونه) خپل لنډ تېر مهال له **(sein)** سره جوړوي:

| | |
|---|---|
| Ich bin **verärgert.**<br>Sie ist **angekommen.** | هغه نالېږند (Intransitiv) کړونه چې د یوه کړن پای ښیي. |
| Ich bin nach Hause **gegangen.** | هغه کړونه (فعلونه) چې د ځای بدلون، خوځښت او یو پرمختګ ښیي. |
| Wir sind hier **geblieben.** | د (bleiben) له کړ (فعل) سره |

## د دود تاکي کړونو لنډ تېرمهال (Das Perfekt von Modalverben)

د مودال کړونو ( دود تاکي فعلونو) لنډ تېرمهال د مرستیالکړ له وسمهال، د دودتاکي کړ (مودال فعل) له کړنومي (مصدر) او د کړنومي (مصدر) له بشپړ کړ (فعل) سره جوړېږي:

| Präsens | Perfekt |
|---|---|
| Ich muss duschen.<br>زه باید ځای پرېمینځم. | Ich habe deutschen müssen.<br>ما باید ځای مینځلی وی. |
| Ich soll arbeiten.<br>ما ته ښایي چې کار وکړم. | Ich habe arbeiten sollen.<br>ما ته ښایېده چې کار وکړم. |
| Ich kann schreiben.<br>زه کولای شم چې ولیکم. | Ich habe schreiben können.<br>ما کولای شوی چې ولیکم. |
| Ich will lesen.<br>زه غواړم چې ولوم (لوست وکړم). | Ich habe lesen wollen.<br>ما غوښتل چې ولولم (لوست وکړم). |

| | |
|---|---|
| Ich darf ins Kino gehen. | Ich habe ins Kino gehen dürfen. |
| زه اجازه لرم چې ننداري ته ولاړم شم. | ما اجازه درلوده چې ننداري ته ولاړ شم. |

## لرتېرمهال (Das Plusquamperfekt)

لرتېرمهال (ماضي بعيد) د هغه چار یا کړن لپاره کارول کېږي چې په تېر وخت کې پېښ شوی وي، خو له وسمهال (حال) سره نه اړیکه ولري او نه پرې کومه اغېزه. په ټولیزه (عمومي) توګه د داسې یوه چار یا کړن لپاره راځي چې په تېر وخت کې له یوه ټاکلي وخت څخه وړاندې یا له یوه بل چار یا عمل څخه مخکې پېښ شوی وي . لومړی پېښه یا کړن (عمل) په لر تېرمهال او دویم هغه په لنډ تېرمهال (Perfekt) یا بشپړ تېرمهال (Präteritum) کې رغېږي:

| |
|---|
| Nachdem ich die Deutsche Sprache gelernt hatte, ginge ich nach Deutschland. |
| وروسته له دې چې جرمنۍ ژبه مې زده کړې وه، جرمني ته ولاړم. |

په دغه بېلګه کې دوه چارې څرګندې شوې دي. لومړۍ چار یا کړن د ژبې زده کول او دویم هغه جرمني ته تګ دی. لومړی مې ژبه زده کړه، وروسته جرمني ته ولاړم. لومړی چار (د ژبې زده کول) په لر تېرمهال کې او دویم هغه (جرمني ته تګ) بیا په بشپړ تېرمهال کې رغېدلی دی.

| |
|---|
| Ich hatte viel gearbeitet, bevor ich mir ein Auto kaufte. |
| مخکې له دې چې موټر واخلم، ما ډېر کار کړی وو. |

په دې بېلګه کې هم دوه چارې رانغښتل شوې دي. لومړی د کار کول او دویم هغه د موټر اخیستل دي. لومړی مې کار وکړ، وروسته مې موټر واخیست. له همدې امله لومړی کړن په لر تېرمهال او دویم هغه په بشپړ تېرمهال یا لنډ تېرمهال کې څرګندېږي.

لر تېرمهال د (haben, sein) د مرستیالکړ (کمکي فعل) په بشپړ تیرمهال او د آر کړ (اصلي فعل) په دویم کړستاینوم (Partizip II) سره رغېږي.

**د (haben) له مرستیالکړ (کمکي فعل) سره:**

| | |
|---|
| Ich **hatte** dich sehr gemocht, bevor du mein Auto gestohlen hast/stahlst.<br>مخکې له دې چې زما موټر غلا کړې، پر ما ډېر ګرانه وې. |
| Sie **hatte** gerade das Essen vorbereitet, da kam ich rein.<br>کله چې دې ډوډۍ تیاره کړې وه، زه د ننه راغلم. |

**د (sein) له مرستیالکړ (کمکي فعل) سره:**

| | |
|---|---|
| Ich **war** schon **gereist** als du bei uns **anriefst.** | کله چې تا موږ ته تیلیفون وکړ، زه په سفر تللی وم. |
| Wir **waren** sehr gespannt **gewesen.** | موږ ډېر لېواله شوي وو. |

# راتلونکې زمانه Das Futur

## لومړی وسترمهال (Das Futur I)

لومړی وسترمهال (راتلونکې زمانه) د هغه چار یا کړن لپاره کارول کېږي چې په راتلونکي کې تر سره یا پېښېږي: زه به حج ته ولاړ شم، تاسې به سبا ته په آزموینه کې برخه واخلئ، دوی به کتاب ولولي.

لومړی وسترمهال (راتلونکې زمانه) د (werden) مرستیالکړ (کمکي فعل) په مرسته د بشپړ کړ (فعل) له کړنومي (مصدر) سره جوړېږي:

| **Subjekt** + **werden (konj.)** + **Verb (Infinitiv)** | |
|---|---|
| Ich **werde** arbeiten. | زه به کار وکړم. |

| | |
|---|---|
| Du **wirst** arbeiten. | ته به کار وکړې. |
| Er/sie/es **wird** arbeiten. | دی یا دا به کار وکړي. |
| Wir **werden** arbeiten. | موږ به کار وکړو. |
| Ihr **werdet** arbeiten. | تاسې به کار وکړئ. |
| Sie/sie **werden** arbeiten. | تاسې/ دوی به کار وکړئ/ وکړي. |

کله چې د (werden) مرستیالکړ (کمکي فعل) له کړنومي (مصدر) سره راشي، کېدای شي چې د یوه چار یا کړن (عمل) په اړه ګومان رامنځته کړي یا په ټینګار سره یوه بلنه او غوښتنه څرګنده کړي:

| |
|---|
| Anaargul **wird** nicht mehr das Auto so schnell fahren. |
| انارګل به بیا موټر دومره تېزه و نه چلوي. |

په دغه بېلګه کې له آره یو ګومان څرګند شوی. دا چې انارګل به په رېښتیا موټر تېز وچلوي که نه، په بېشړ باور سره نه شي ویل کېدای، خو ویناوال په دې اند دی چې انارګل به نور موټر ورو-ورو وځغلوي.

| |
|---|
| Du **wirst** nie im Leben hier spielen. |
| ته به بیا په ژوند کې دلته لوبه و نه کړې! |

ویناوال په زغرده یا ټینګار سره وایي یا له مخاطب څخه غواړي چې بیا دلته لوبه و نه کړي.

په غونډله (جمله) کې د (wohl, sicher, bestimmt) کلمو په راوړلو سره ګومان یا ډاډ نور هم غښتلی کېږي:

| |
|---|
| Sie wird **wohl** nicht mehr zu Hause sein. |
| دا به شاید نوره په کور کې نه وي. |

### دويم وسترمهال (Das Futur II)

دويم وسترمهال (راتلونکی) د هغه کړن يا چار د ښرګندولو لپاره کارول کيږي چې په راتلونکي مهال کې به په يوه ټاکلي وخت يا له يوه بل کړن (عمل) يا چار څخه مخکې سر ته رسېدلی وي. ځينې ژبپوهان هرګوره په دې اند دي چې دويم وسترمهال له آره د يوه چار په اړه د شک يا ګومان د ښرګندولو لپاره کارول کيږي. که ووايو چې:

| |
|---|
| Wir werden gegessen haben, wenn Ihr kommt.<br>تر څو چې تاسې راځئ، موږ به ډوډۍ خوړلې وي. |
| Ich werde mich bis nächstes Jahr verlobt haben<br>تر بله کاله به مې کوژده کړې وي. |

په برسېرنه لومړۍ بېلګه کې دوه عملونه ښرګند شوي دي. لومړی چار راتګ دی او دويم هغه د ډوډۍ خوړل. په دويمه بېلګه کې له يوه ټاکلي وخت څخه وړاندې د کوژدې کول يا يې کېدون (امکان) ته نغوته شوې ده. دواړه بېلګې يو ګومان ښرګندوي. دا هرګوره مالومه نه ده چې هرو مرو به دواړه عملونه سر ته رسيږي.

دويم وسترمهال په ورځنيو خبرو اترو يا عامه ژبه کې ډېر کم کارول کيږي. د دې پر ځای لنډ تېرمهال د وخت له يادولو سره (ژر تر ژره، سبا، بله مياشت، بل کال ته) کارول کيږي.

| |
|---|
| Nächstes Jahr werden alle NATO Truppen aus Afghanistan abgezogen haben.<br>Nächstes Jahr sind alle NATO Truppen aus Afghanistan abgezogen.<br>راتلونکي کال ته به ټولې ناټو لښکرې له افغانستان څخه وتلې وي. |

دواړه غونډلې يوه مانا لري. لومړۍ غونډله په دويم وسترمهال کې او دويمه هغه په لنډ تېرمهال کې د وخت له يادولو سره رغېدلې ده.

دویم وسترمهال د (werden) مرستیالکړ (کمکي فعل) په وسمهاله بنه، د آر کړ (فعل) په دویم کړستاینوم (Partizip II) او د (haben, sein) د مرستیالکړونو له کړنومي (مصدر) سره جوړېږي:

| | |
|---|---|
| Ich werde gelesen haben, wenn du kommst. | ته چې راځې، ما به لوست کړی وي. |
| Du wirst in Juli gereist sein. | ته به په جولای کې تللی (سفر شوی) وې. |
| Sie wird bis Mitternacht da sein. | دا به تر نیمې شپې دلته (راغلې) وي. |
| Wir werden wohl verrückt sein wenn wir das machen. | موږ به شاید لېوني وو، که مو دا کار وکړ |
| Sie/sie werden wohl was gekocht haben. | تاسې یا دوی به شاید یو څه پخ کړي وي. |

په برسېرنو بېلګو کې (werden, sein) په وسمهال کې اوړون موندلی (ګردان شوی)، آر کړ (اصلي فعل) په دویم کړستاینوم (Partizip II) او (haben, sein) د کړنومي (مصدر) په بڼه راغلي دي.

| | **Schwaches Verb**<br>**کمزوری کړ** | **Starkes Verb**<br>**غښتلی کړ** |
|---|---|---|
| Ich | werde studiert haben<br>ما به زده کړه کړې وي. | werde gelesen haben<br>ما به لوست کړی وي. |
| Du | wirst studiert haben<br>تا به زده کړه کړې وي. | wirst gelesen haben<br>تا به لوست کړی وي. |
| Er/sie/es | wird studiert haben<br>ده یا دې به زده کړه کړې وي. | wird gelesen haben<br>ده یا دې به لوست کړی وي. |
| Wir | werden studiert haben<br>موږ به زده کړه کړې وي. | werden gelesen haben<br>موږ به لوست کړی وي. |
| Ihr | werdet studiert haben<br>تاسې به زده کړه کړې وي. | werdet gelesen haben<br>تاسې به لوست کړئ وي. |
| Sie/sie | werden studiert haben | werden gelesen haben |

| | | |
|---|---|---|
| تاسې یا دوی به لوست کړئ وي، | تاسې یا دوی به زده کړه کړې وي. | |

لکه وړاندې چې وویل شول، دویم وسترمهال (Futur II) کېدای شي چې لکه لومړی وسترمهال (Futur I) د یوه ګومان د ځرګندولو یا د یوې ټینګارې بلنې یا غوښتنې لپاره هم وکارول شي:

| |
|---|
| Spingul ist noch nicht da. Er wird den Flug verpasst haben.<br>سپین ګل تر اوسه نه دی راغلی، دی به هرو مرو له الوتکې څخه پاتې شوی وي. (ګومان) |
| Sie werden bis morgen das Auto repariert haben.<br>تر سبا پورې مو باید موټر جوړ کړی وي. (په ټینګار سره غوښتنه) |

## ناخبري Konjunktiv

ناخبري (انشايي، ګوماني) د کړ (فعل) داسې یو دود دی چې په ټولیزه توګه د ګومان او کېدون (امکان) د ځرګندولو او همدارنګه د ناسیده وینا د نکل لپاره کارول کېږي.

**لومړی ناخبري (Konjunktiv I):**

لومړی ناخبري په ټولیزه توګه د نقل قول یا د نورو کسانو د خبرو او وینا د راوړلو لپاره کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Lilly sagte, dass sie nicht nach Hause kommen **könne**. | لیلي وویل چې ګواکې دا نه شي کولای چې کور ته راشي. |
| Er meinte, dass er immer noch zur Universität **gehe**. | دی وایي چې ګواکې لا اوس هم پوهنتون ته ځي. |
| Ana sagt, sie **sei** krank. | انه وایي چې ګواکې ناروغه ده. |
| Marcel sagte, er **habe** kein Geld. | مرسیل وویل چې ګواکې دی روپۍ نه لري. |

سربېره پر دې، لومړی ناخبري (Konjunktiv I) په لاندې حالتونو کې هم کارول کېږي:

| | | |
|---|---|---|
| Fried**e** sei mit dir! | اسلام علیکم! | مذهبې ویناوو کې |
| Er leb**e** hoch! | تل دې سرلوړی وي! | د هیلو څرګندولو لپاره |
| Man nehm**e** 100 g Zucker, 200g Mehl. | سړی 100 ګرامه بوره، 200 ګرامه اوړه....اخلي. | د ډاکترانو د نسخو یا د پخلنځي لپاره |
| Gegeben **sei** eine Strecke zwischen zwei Punkten: a und b | د دوو ټکو A او B تر منځ واټن راکړل شوی دی. | په ریاضي یا حساب کې |

## د لومړي ناخبري (Konjunktiv I) جوړول:

لومړی ناخبري له کړ ستې (د فعل له ستې) سره جوړیږي. د (er/sie/es) یا دریم وګړي لپاره چې کله ناخبري جوړوو، یوازې له کړنومي (مصدر) څخه (n–) غورځوو:

| **Verben** | Rufen | Schreiben | Laufen | Hören |
|---|---|---|---|---|
| **er/sie/es** | ruf**e** | schreib**e** | lauf**e** | Hör**e** |

په لومړي ناخبري کې د دویم وګړي (du, ihr) وګړیز پای د خبري (Indikativ) په څیر دی. یوازینی توپیر یې دا دی چې په ناخبري کې د کړستې (د فعل له ستې) څخه وروسته (e–) راځي:

| **Verben** | **Rufen** | **Schreiben** | **Laufen** | **Hören** |
|---|---|---|---|---|
| du | ruf**e**st | schreib**est** | lauf**e**st | Hör**e**st |
| ihr | ruf**e**t | schreib**e**t | lauf**e**t | Hör**e**t |

د لومړیو وګړو (مفرد او جمع) (ich, wir, sie/Sie) د لومړی ناخبري (Konjunktiv I) او خبري (Indikativ) وګړیز پای کوم توپیر نه لري.

| | **Indikativ** | **Konjunktiv I** |
|---|---|---|
| ich | ruf**e** | Rufe |
| Wir/sie/Sie | rufen | Rufen |

له همدې امله (ich, wir, sie/Sie) ته دويم ناخبري (Konjunktiv II) کارول کيږي.

| | **Konjunktiv II** |
|---|---|
| Ich | **hätte** gerufen/**würde** rufen. |
| Wir/Sie/sie | **hätten** gerufen/**würden** rufen. |

د لمړي ناخبري په بڼه د (sein, haben) د مرستيالکړونو (کمکي فعلونو) اوړون او وګړيز پاى:

| **Bildung des Konjunktives I** | | |
|---|---|---|
| | **Sein** | **Haben** |
| ich | sei | Habe |
| du | seist | Habest |
| er/sie/es | sei | Habe |
| wir | seien | Haben |
| ihr | seiet | Habet |
| sie/Sie | seien | Haben |

که چيرې د لمړي ناخبري(Konjunktiv I) بڼې له وسمهال (Präsens) سره نه توپير کيږي، نو بايد دويم ناخبري (Konjunktiv II) وکارول شي.

| | |
|---|---|
| Maja sagte, ich **habe** keine Zeit für sie. | ميه وايي چې ګواکي زه د دې لپاره وخت نه لرم. دغه بېلګه که څه هم چې په ناخبري کې ده، خو د خبري سره کوم توپير نه لري. له همدې امله بايد په دويم ناخبري کې وليکل شي. |
| Maja sagte, ich **hätte** keine Zeit für sie. | |

## دویم ناخبري (Konjunktiv II)

دویم ناخبري په ټولیزه توګه د خیال یا تصور، هیلو او هغو ارمانونو د څرګندولو لپاره کارول کېږي چې په لاس راوړل یا سر ته رسول یې په حال وخت یا د خبرې کولو په وخت کې کېدون (امکان) و نه لري. همداسې کېدای شي چې د ناسیده وینا د نکل (غیر مستقیم نقل قول) او یا په هغو غونډلو کې راشي چې ډېر درنښت پکې څرګند شوی وي. په ټولیزه توګه په لاندې حالتونو کې کارول کېږي:

**د هیلې او ارمان څرګندول:** په لاندې بېلګه کې د موټر درلودلو یوه هیله او یو ارمان څرګند شوی دی. خو زه موټر نه لرم. همداسې یې دویمه بېلګه در واخلئ. زه پیلوټ نه یم، خو کاشکي چې وای.

| | |
|---|---|
| Ich **wünschte**, ich **hätte** ein Auto. | درېغه (کاشکي) چې یو موټر مې درلودلای. |
| Ich **wünschte**, ich **wäre** Pilot. | درېغه (کاشکي) چې زه پیلوټ وای. |

**د ناریښتیني (غیر واقعي) حالت څرګندول:**

| | |
|---|---|
| Wenn ich Arzt **wäre**, **würde** ich armen Menschen helfen. | که زه ډاکټر وای، له نېستمنو خلکو سره به مې مرسته کړې وای. |
| Wenn er du **wäre**, **hätte** er viel Geld. | که دی ته وای، ډېرې روپۍ به یې درلودای. |

**په ډېر درنښت او احترام یوه غوښتنه :**

| | |
|---|---|
| **Wärst** du so freundlich, mir eine Tasse zu geben. | دومره مهربانه شه ما ته یوه پیاله راکړه. |
| **Könntest** du mir bitte ein Glass Tee geben? | کولای شې چې مهرباني وکړې، ما ته یو ګیلاس چای راکړې؟ |

**د ناسیده وینا نکل** (غیر مستقیم نقل قول):

| | |
|---|---|
| Anaargul sagt, du **müsstest** schneller arbeiten. | انارګل وايي چې ته باید چټک کار وکړې. |
| Lisa sagte, sie **wäre** lieber zu Hause. | لیزاوویل چې ښه به دا وی چې په کور کې وای. |

**په (als ob) سره د یوه ناریښتیني اکر (حالت) پر تله کول:**

| | |
|---|---|
| Du sahst so aus, **als ob** du müde **wärst.** | ته داسې ښکارېدې لکه چې ستړی وې. |

ته یوازې داسې ښکارېدې لکه چې ستړی وې، خو ستړی نه وې. دغه ناریښتینې پرتله کېدای چې په (als ob) یا یوازې په (als) سره ورغبرېږي. که مله غونډله (فرعي جمله) په (als ob) راشي، نو اوړېدلی کړ (ګردان شوی فعل) (wärst) د غونډلې په پای کې راځي. (برسېرنه بېګله وګورئ). که چېرې پرتله یوازې په (als) سره پیل شي، اوړېدلی کړ (wärst) وروسته له (als) څخه راځي:

| | |
|---|---|
| Du sahst aus, **als wärst** du müde. | ته داسې ښکارېدې لکه چې ستړی وې. |

دغه ډول ناریښتینې پرتله کول کېدای شي چې په لومړي ناخبري (Konjunktiv I) سره هم جوړ شي:

| | |
|---|---|
| Du sahst aus, als **seiest** du müde. | ته داسې ښکارېدې لکه چې ستړی وې. |

د دویم ناخبري (Konjunktiv II) جوړول په مهال پورې اړه لري چې د وسمهال او که تېرمهال چار څرګندول غواړو. دوی کېدای شي چې د کړ (فعل) له ساده (Synthetisch) بڼې او یا د (würde) بڼې په مرسته جوړ شي. د وسمهال ساده بڼه یې په لاندې توګه ده:

| | | |
|---|---|---|
| **Synthetisch**<br>**ساده بڼه** | Ich **wäre.** | زه به وم (وای). |
| | Du **hättest.** | تا به درلودای. |
| | Wir **sprächen.** | موږ به غږېدو (و به غږېږو). |

هغه کړونه (فعلونه) چې خبري بشپړ تېرمهال (Präteritum Indikativ) يې د دويم ناخبري (Konjunktiv II) په څېر دی، دويم ناخبري يې د (würde) په مرسته سره جوړېږي:

| | | |
|---|---|---|
| **Präteritum Indikativ** | Ich ginge | دا چې دواړه بڼې يو ډول دي، نو د سهوې دمخنيوي په موخه بايد د (würde) په بڼه ورغېږي. |
| **Würde–Form** | Ich ginge. | |
| **Konjunktiv II** | Ich **würde** gehen | زه به ولاړ شم . (هيله) |

د دويم ناخبري په بڼه تېر حالت په (haben, sein +Partizip II) سره رغېږي:

| | |
|---|---|
| Ich **wäre gelaufen.** | ما به منډه کړې وای. |
| Du **hättest** die Prüfung **bestanden.** | ته به په آزموينه کې بريالی شوی وای. |
| Wir **hätten** ein Buch **gelesen.** | موږ به يو کتاب لوستلی وای. |

## Der Imperativ امري

د جرمنۍ ژبې په پښويه (ګرامر) کې د دود له پلوه د کړ (فعل) بله بڼه امري بڼه ده چې د غوښتنو، امرکولو، سپارتېښتنو، مشورو او بلنو لپاره کارول کېږي.

| Dusch! | Geh was essen! | Gehen Sie bitte langsam! |
|---|---|---|
| امر : ځان پرېمينځه! | سپارښتنه: ولاړ شه يو څه وخوره! | هيله: مهرباني وکړئ لږ ورو ځئ! |

امري بڼه په دريو ډولونو سره راځي:

| **du** | **Ihr** | **Sie** |
|---|---|---|
| warte!<br>تم شه! | wartet!<br>تم شئ! | Warten Sie!<br>تم شئ (درنبنت)! |

کله چې د (du, ihr) له نومځري (ضمير) سره امري غوندله جوړوو، يوازې کړ (فعل) يې اوړون مومي، خو د (du, ihr) نومځری په خپله غورځي. د (du) په بڼه کې ان د کړ وګړيز پای (st–) هم غورځي. د (Sie) په بڼه کې هرګوره له کړ سره د (Sie) نومځری (ضمير) هم راځي.

| Du | Ihr | Sie |
|---|---|---|
| Schreib!<br>وليکه! | Schreibt!<br>وليکئ! | Schreiben Sie!<br>تاسې يې وليکئ! |

| ځينې ژبپوهان په دې اند دي چې امري بڼه کېدای شي چې د (wir) په ملګرتيا هم ورغېږي: | |
|---|---|
| Warten wir! | تم کېږو! (راځئ چې تم شو!) |
| Gehen wir! | ځو به! (راځئ چې ځو!) |

د دويم يوګړي (مفرد) وګړي د امري بڼې د جوړولو لپاره لاندې ټکي بايد په پام کې ونيول شي.

| Du fährst. | Fahr! | په بېدوده کړونو (بې قاعده فعلونو) کې د دويم يوګړي (مفرد) شخص (Umlaut) غورځي: |
|---|---|---|
| Läch**eln** | Lächle! | هغه کړونه چې ستبه يې په (–eln, –ern, –nen, –ig) او هغوی چې ستبه يې په يو بې غږ (کانسوننت) چې له (–n –m, –n) سره راشي، امري بڼه يې په پای کې د (–e) توری خپلوي. |
| Leug**nen** | Leugne! | |
| Öff**nen** | Öffne! | |
| At**m**en | Atme! | |

| | | |
|---|---|---|
| Bit**t**en | Bitt**e**! | همدارنګه هغه کړونه چې ستڼه یې په (d, –t–) پای وومومي، |
| Re**d**en | Rede! | ډېر هغوی یې په امري بڼه کې د (e–) توری خپلوي. |

## کړنومی (Der Infinitiv)

کړنومی (مصدر) یو ناپایه کړن څرګندوي. یا په بله وینا، کړنومی د کړ (فعل) آره بڼه ده چې د شمېر، مهال او نوري (جنس) پر بنسټ نه وي اوړېدلې یا ګردان شوې. لکه په پښتو ژبه کې چې خوړل، لوستل او لیکل یو کړنومی (مصدر) دی او اوړون یې نه دی موندلی، په همدې توګه یې په جرمنۍ ژبه کې هم در واخلئ. په جرمنۍ ژبه کې کړنومی په (en, –n–) سره پای ته رسېدلی وي.

Lach***en***, Les***en***, Vergess***en***, verhinder***n***, alter***n***

کړنومی (مصدر) کېدای شي چې یوازې او یا له (zu) سره راشي. په لاندې حالتونو کې یوازې راځي:

| | | |
|---|---|---|
| Ich kann schwimmen.<br>Du musst ruhig sein. | زه کولای شم چې لامبو ووهم.<br>ته باید کرار اوسې. | وروسته له دود ټاکي<br>مودال کړ (فعل) څخه |
| Sie hat schwimmen können. | دې کولای شوی چې لامبو ووهي. | له مرستیالکړ سره په لنډ<br>او لر تېرمهال کې |

کړنومی (مصدر) له هغو کړونو (فعلونو) سره هم پرته له (zu) څخه راځي چې زموږ له حس سره تړاو ولري لکه لیدل او اورېدل:

| | |
|---|---|
| Ich **sah** dich Auto **fahren.** | ما ته ولیدې چې موټر دې چلوه. |
| Ich **hörte** sie laut **lachen.** | ما دا واورېده چې په لوړ غږ یې خندل. |

په همدې توګه له هغو کړون (فعلونو) سره چې یو خوځښت څرګندوي، کړنومی (مصدر) پرته له (zu) څخه راځي:

| | |
|---|---|
| Ich **gehe** einkaufen. | زه په سودا اخیستلو پسې ځم. |
| Anaargul **läuft** Hilfe holen. | انارګل ځي چې د چا مرسته راوړي (وغواړي). |
| Ana **kommt** uns besuchen. | انه راځي چې موږ وویني (زموږ میلمنه شي). |

د (helfen, lernen, lehren, bleiben, lassen) له کړونو (فعلونو) څخه وروسته هم کړ (فعل) د کړنومي (مصدر) په بڼه پرته له (zu) څخه راځي:

| | |
|---|---|
| Ich helfe dir beim **<u>Lernen</u>**. | په زده کړه کې درسره مرسته کوم. |
| Du **<u>bleibst</u>** hier stehen. | همدلته ولاړ (درېدلی) پاتې شه. |
| **<u>Lass</u>** es dir schmecken. | پرېږده چې مزه درکړي (ښه اشتها). |
| Sie **<u>lehrt</u>** mir Schwimmen. | دا ما ته لامبو را زده کوي. |

که چېرې له کړنومي (مصدر) سره په غوندله کې نور بشپړاند توکي لکه کړی (مفعول) او یا کړول (قید) هم راشي، کېدای شي چې له (lernen, lehren, helfen) سره (zu) هم راشي:

| | |
|---|---|
| Ich kann dir auch **<u>helfen</u>**, dein Auto **<u>zu</u>** reparieren. | زه هم کولای شم چې د موټر په جوړولو کې درسره مرسته وکړم. |
| Sie **<u>lehrt</u>** mir am Computer **<u>zu</u>** spielen. | دا ما ته په کمپیوټر کې لوبې را زده کوي. |
| Du **<u>lernst</u>** Suppe **<u>zu</u>** kochen. | ته د آش پخول زده کوې. |

په برسېرنو بېلګو کې بشپړاند توکي (dein Auto, am Computer, Suppe) دي چې له کړنومي (مصدر) سره یو ځای راغلي دي.

ځینې کړونه (فعلونه) که له (zu) سره راوړل شي، بېله مانا ورکوي او پرته له (zu) څخه بله:

| کړ | بېلګه | مانا |
| --- | --- | --- |
| Haben<br>لرل | Du **hast** ein Auto. | ته یو موټر لرې (ملکیت) |
| | Du **hast** zu verschwinden. | ته باید ورک شې (باید له دې ځایه ولاړ شې) |
| Sein<br>استېدل | Das **ist** deine Aufgabe. | دا ستا دنده ده (استېدل) |
| | Diese Aufgabe **ist** zu machen. | دغه دنده باید هرو مرو وکړل شي (باید، هرو مرو) |
| Scheinen<br>ځلېدل | Die Sonne **scheint**. | لمر ځلیږي (ځلېدل) |
| | Du **scheinst** müde **zu** sein. | ته ستړی غوندې ښکارېږې. (ښکارېدل) |
| Brauchen<br>اړتیا درلودل | Er **braucht** ein Auto. | دی موټر ته اړ دی. (اړتیا) |
| | Er **braucht** sich keine Sorge **zu** machen. | دی باید دومره غم و نه کړي. (ضرور نه ده) |
| Pflegen<br>پالل | Anna **pflegt** ihren Vater. | انه خپل پلار پالي. (پالل) |
| | Anna **pflegt** jeden Tag Sport **zu** machen. | انه هره ورځ سپورټ کوي. (د یوه کار کول په پرله پسې بڼه) |
| Wissen<br>پوهېدل | Nicole **weiß** es. | نیکول پوهیږي. (پوهه) |
| | Nicole **weiß** nicht sich **zu** helfen. | نیکول نه شي کولای چې له ځان سره مرسته وکړي. (توان) |
| Verstehen<br>درک کول | Sie **versteht** mich nicht. | دا ما نه شي درک کولای. (درک) |
| | Ich **verstehe** mit ihr um**zu**gehen | زه کولای شم چې له دې سره ګوزاره وکړم. (توان) |
| Gedenken<br>پر زړه کول | Wir gedenken der Opfer. | موږ د مړو په اړه دعا کوو. (یادول) |
| | Was **gedenkst** du mit deinem Auto **zu** machen? | څه پلان لرې چې له موټر سره یې دې وکړې؟ (پلان لرل) |
| Kommen<br>راتلل | Anaargul **kommt** nach Hause. | انارګل کور ته راځي .(راتګ) |
| | Wir **kommen** auf ihn **zu** | موږ به د دې په باره کې خبرې |

| | | |
|---|---|---|
| | sprechen. | وکړو. (یادول) |
| Bekommen<br>لاسته راوړل | Du **bekommst** ein Geschenk. | ته یوه ډالۍ لاسته راوړې.<br>(لاس ته راوړل) |
| | Sie **bekommt** meine Liebe **zu** spüren. | دا به زما مینه احساس کړي.<br>(امکان درلودل، احساسول) |

## Der Infinitiv mit Zu

**له کړنومي (مصدر) سره د (zu) کارول:**

له هغو قاعدو او بېدویې (استثنا) څخه پرته چې کړنومی (مصدر) له (zu) سره نه راځي، په ټولیزه توګه په نورو حالتونو کې له کړنومي (مصدر) سره (zu) راځي. سربېره پر دې د ښه ترا سپړنې لپاره د یو څو لارښوونو راوړل اړین دي.

په مله غونډله (فرعي جمله) کې: کله چې په آره غونډله (اصلي جمله) کې کړند (فاعل) یاد شوی وي او مله غونډله (فرعي جمله) کړند (فاعل) و نه لري، کړنومی (مصدر) له (zu) سره راځي:

Ich hoffe, die Prüfung <u>**zu**</u> bestehen.

په دغه بېلګه کې له کامې څخه وروسته مله غونډله (فرعي جمله) راغلې ده چې په خپله کړند (فاعل) نه لري، خو کړند یې په آره غونډله (اصلي جمله) کې راغلی دی. همداسې کېدای شي چې د هغې ملې غونډلې پر ځای چې په (dass) سره پیل شوې وي، کړنومی (مصدر) له (zu) سره راشي. په دې اکر کې د (Dass-Satz) غونډله له منځه ځي او اوډون (جوړښت) یې بدلون مومي:

Wir hoffen, **dass** wir nächste Woche nach Afghanistan fliegen.

په لاندې بېلګه کې به د (dass-Satz) غونډله په بل ډول ولیکو او (dass) به ترې وغورځوو:

Wir hoffen, nächste Woche nach Afghanistan <u>**zu**</u> fliegen.

په هغو غونډلو کې چې يو تصميم څرګند شوی وي، کړنومی (مصدر) له (zu) سره راځي:

Ich habe vor, nach Afghanistan **zu** fliegen.

ما تصميم دی نيولی چې افغانستان ته والوزم (پرواز وکړم).

که چېرې کړنومی (مصدر) له ويشوړ (د جلا کيدو وړ) کړ (فعل) څخه جوړ شوی وي، (zu) د مختاړي او کړ (فعل) تر منځ راځي:

| Trennbare Verben– ويشوړ کړونه | |
|---|---|
| Ich freue mich, dich wieder**zu**sehen. | زه خوښ يم چې بيا دې وينم. |
| Wir sind bereit um**zu**ziehen. | موږ تيار يو چې کډه وکړو. |

په برسېرنه بېلګه کې (wiedersehen) يو ويشوړ کړ (فعل) دی چې له (wieder) او (sehen) څخه جوړ شوی دی. د (zu) په راوړلو سره کړ (فعل) په خپلو دوو برخو وېشل کېږي او (zu) يې په منځ کې راځي. همداسې يې د (umziehen) کړ درواخلئ.

## Das Partizip کړستاينوم

کړستاينوم هغه ويی (کلمه) ده چې ځينې ځانګړتياوې د کړ (فعل) او ځينې هغوی د ستاينوم (صفت) ولري. په ټوليزه توګه د ستاينوم (صفت) او نابشپړو غونډلو (نيمه جملو) پر ځای کارول کېږي.

| Verben | | Partizipien | |
|---|---|---|---|
| schlafen | ويده کېدل | **schlafend** | ويده (د خوب په حال کې) |
| weinen | ژړل | **weinend** | ژړاند (د ژړا په حال کې) |
| brechen | ماتول | **gebrochen** | مات |
| nerven | قهرول | **genervt** | په قهر |

Das Baby, **das gerade schläft**, ist mein Sohn.

Das **schlafende** Baby ist mein Sohn.

د لومړۍ غونډلې (جملې) د نیمې برخې (das gerade schläft)، پر ځای په دویمه غونډله کې یوازې د (schlafend) کړستاینوم راغلی دی. د دواړو غونډلو (جملو) مانا هرګوره یوه ده.

په جرمنۍ ژبه کې دوه ډوله کړستاینومونه شتون لري چې د لومړي کړ ستاینوم (Partizip I) او دویم کړستاینوم (Partizip II) په نامه سره یادېږي.

**لومړی کړستاینوم (Partizip I)**

لومړی کړستاینوم چې د وسمهال کړستاینوم (Partizip Präsens) په نامه هم یادېږي، په وسمهال کې کارول کېږي. د جوړښت لپاره يې پر کړ ستېه (د فعل ستېه) د (end–) وروستاړی (پسوند) ور ډېرېږي:

| **singen** | **lachen** | **Lesen** |
|---|---|---|
| sing**end** | lach**end** | les**end** |
| د سندرو ویلو په حال کې | خنداند | د لوست په حال کې |

هغه کړونه (فعلونه) چې په (eln, –ern–) سره پای ته رسېږي، د کړستاینوم د جوړولو لپاره يې پر پای یوازې د (nd–) وروستاړی ور ډېرېږي.

| lächeln | zögern |
|---|---|
| läche**lnd** | zöger**nd** |

لومړی کړستاینوم (Partizip I) کېدای شي چې د ملې غونډلې (فرعي جملې) یا د غونډلې د یوې برخې پر ځای یا هم د لنډ ستاینوم په توګه وکارول شي. په دې ډول غونډلو کې په ټولیزه توګه دوه چاره هممهال یا یو ځای پېښېږي:

| | |
|---|---|
| Das Mädchen, **das weint**, sucht ihre Puppe.<br>دا نجلۍچې ژاړي، خپله لانځکه لټوي. | Das **weinende Mädchen** sucht ihre Puppe.<br>ژړېدونکې نجلۍ خپله لانځکه لټوي. |
| Die Vögel, **die so schön singen**, kommen aus Osten.<br>دا مرغیانې چې ښکلې سندرې بولي (چغېږي)، له ختیځ څخه راځي. | Die schön **singenden** Vögel kommen aus Osten.<br>ښکلې سندربولې (چغېدونکې) مرغۍ له ختیځ څخه راځي. |
| Das Kind, **das laut schreit**, rennt nach Hause.<br>دا ماشوم  چې په لوړ غږ ژاړي، د کور پر لور ځغلي. | Das **laut schreiende Kind** rennt nach Hause.<br>په لوړ غږ ژړېدونکی ماشوم د کور پر لور ځغلي. |

په برسېرنو بېلګو کې ملې غونډلې (فرعي جملې) چې خط ترې لاندې اېستل شوی دی، پر ځای یې په ښۍ خوا کې یوازې کړستاینوم راغلی دی. د دواړو غونډلو مانا هرګوره یو ډول ده. او لکه څنګه چې مخکې یادونه وشوه، په غونډلو کې دوه چاره هممهال سر ته رسېږي:

ماشوم ژاړي او د کور پر لور ځغلي.

لنډ کړستاینوم کېدای شي چې د کړول (قید) په توګه هم راشي او په خپله دغه بڼه سره د کړ (فعل) یا یوه بل ستاینوم (صفت) په اړه نور مالومات راکړي یا یې نور هم وستایي:

| |
|---|
| Anna geht immer **lächelnd** nach Hause. |
| انه تل په موسکا سره د کور پر خوا درومي. |

کله چې لومړی کړستاینوم (Partizip I) له کړ (فعل) ورسته راشي، لکه په برسېرنه بېلګه کې، نه ګردان کېږي. خو که چېرې له نوم څخه وړاندې راشي، نو اوړون (ګردان) مومي:

| | |
|---|---|
| **Nominativ**<br>کرړند پېر (فاعلي حالت) | Der **singende** Vogel ist wieder da.<br>سندربوله مرغی بیا دلته ده. |
| **Akkusativ**<br>لنډ کړی پېر (بې واسطه مفعولي حالت) | Ich liebe **den singenden** Vogel.<br>زه له سندربولې مرغۍ سره مینه لرم. |
| **Dativ**<br>لر کړی پېر (با واسطه مفعولي حالت) | Ich habe **dem singenden** Vogel einen Namen gegeben.<br>ما سندربولې مرغۍ ته یو نوم ورکړی دی. |

ټولې برسېرنې بېلګې په چارنومپير (Aktiv) بڼه کې دي، خو که له کړستاینوم سره (zu) راوړل شي، نو د بېچار (Passiv) مانا ترې اخېستل کېږي:

| |
|---|
| Die weinende Frau ist **zu** bemitleiden. |
| له ژړغونې ښځې سره باید غمشریکي وشي. |

لکه له ستاینوم (صفت) څخه چې نوم جوړېدای شي، همداسې کېدای شي چې له لومړي کړستاینوم څخه هم یو نوم جوړ شي:

| Verb | Partizip I | Nomen |
|---|---|---|
| Lesen<br>لوستل | Lesend<br>لوستکی (شخص) | Die Lesenden<br>لوستونکي (خلک) |
| Schreiben<br>لیکل | Schreibend<br>لیکوال | Die Schreibenden<br>لیکوالان |
| Die Lesenden sind glücklicher.<br>لوستونکي (خلک) بختورترا دي. | | |
| Die Schreibenden haben bestimmt Spass.<br>لیکوالان (خلک) هرو مرو ښه وخت لري. | | |

## دویم کړ ستاینوم (Partizip II)

دویم کړ ستاینوم چې د لنډ تېرمهال کړستاینوم (Partizip Perfekt) په نامه هم یادېږي، نه یوازې د ستاینوم (صفت) په توګه کارېدای شي، بلکې همداسې د کړ (فعل) په توګه د مهالونو (زمانو) په جوړولو کې هم کارول کېږي. سربېره پر دې، دویم کړستاینوم کولای شي چې د یوې غونډلې (جملې) د یوې برخې پر ځای هم راشي، لکه لومړی کړستاینوم. د ده د جوړولو لپاره د غونډلې (جملې) د کړ (فعل) ډول اړین دی، ځکه چې له کمزورو (با قاعده) کړونو (فعلونو) سره یو ډول جوړېږي، له غښتیلو (بې قاعده) هغوی سره بل ډول او له ګډو کړونو (فعلونو) سره بل ډول رغېږي:

**کمزوري کړونه:** کړ سته (د فعل سته) د (-ge) مختاړی او د (t-) پایتوری خپلوي:

| **Verb** | **Formel**<br>**ge+کړسته+t** | **Partizip II** |
|---|---|---|
| lachen | **ge** + **lach** + **t** | gelacht |
| fragen | **ge** + **frag** + **t** | gefragt |
| machen | **ge** + **mach** + **t** | gemacht |

که چېرې د کړ (فعل) مختاړی (پېشوند) د جلاکېدو وړ وي، نو (-ge-) د منځتاړي په توګه د کړ ستې او مختاړي (پېشوند) تر منځ راځي او کړسته د (t-) پایتوری خپلوي:

| **Verb** | **Formel**<br>**مختاړی + ge + کړسته + t** | **Partizip II** |
|---|---|---|
| abfragen | ab + ge + frag + t | abgefragt |
| abstempeln | ab + ge + stempel +t | abgestempelt |

که چېرې د کړ (فعل) مختاړی یا پېشوند (Präfix) د جلاکېدو وړ نه وي، کړسته د (t-) پایتوری خپلوي او د (-ge) مختاړی (پېشوند) ګرد سره غورځي:

| Verb | Formel<br>t + کړسته + مختاړی | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| besuchen | be + such + t | besucht |
| erzählen | er + zähl + t | erzählt |
| verdienen | ver + dien + t | verdient |

د کمزوریو (با قاعده) کړونو (فعلونو) یو ټولی (ګروپ) په (ieren–) سره پای ته رسیږي. د دوی دویم کړستاینوم (Partizip II) هم پرته د (–ge) له مختاړي یا منځتاړي څخه رغیږي او کړسته یې د (t–) پایتوری خپلوي:

| Verb | Formel<br>t + کړسته | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| studieren | studier + t | studiert |
| renovieren | renovier + t | renoviert |
| probieren | probier + t | probiert |
| diskutieren | diskutier + t | diskutiert |

هغه کمزوري (با قاعده) کړونه (فعلونه) چې سټه یې په (d, –t, –m, –n–) سره پای ته ورسیږي، دویم کړستاینوم (Partizip II) یې د (–ge) په مختاړي او کړسته یې د (et–) توري خپلوي:

| Verb | Formel<br>ge + کړسته + et | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| reden | ge + red+ et | geredet |
| arbeiten | ge + arbeit + et | gearbeitet |
| atmen | ge + atm + et | geatmet |
| rechnen | ge + rechn + et | gerechnet |

**غښتلي کړونه** (بې قاعده فعلونه) د (Partizip II) په جوړولو کې تل د (en–) پایتوري خپلوي، د ځینو کړونو (فعلونو) د ستې واول (خپلواک) بدلون مومي، ځینې کړونه یې د (–ge) مختاړی (Präfix) خپلوي او د ویشوړ (د جلا کېدو وړ ) کړونه (فعلونه) هرګوره د (–ge–) منځتاړی اخلي:

| **Verb** | **Formel**<br>**ge + کړسته + en** | **Partizip II** |
|---|---|---|
| fahren | ge + fahr+ en | gefahren |
| laufen | ge + lauf + en | gelaufen |

هغه کړونه (فعلونه) چې د ستې واول (خپلواک) یې بدلون مومي:

| **Verb** | **Formel**<br>**ge + کړسته + en** | **Partizip II** |
|---|---|---|
| bleiben | ge + **blieb**+ en | geblieben |
| schreiben | ge + **schrieb** + en | geschrieben |

له ویشوړ (د جلا کېدو وړ) کړونو (فعلونو) سره:

| **Verb** | **Formel**<br>**مختاړي + ge + کړسته + en** | **Partizip II** |
|---|---|---|
| abschreiben | ab + ge + schrieb + en | abgeschrieben |
| abnehmen | ab + ge + nomm + en | abgenommen |

له هغو کړونو (فعلونو) سره چې مختاړی یې نا ویشوړ وي (د جلا کېدو وړ نه وي) او د ستې واول یې بدلون و نه مومي:

| Verb | Formel<br>مختاړی + کړسته + en | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| verfahren | ver + fahr + en | verfahren |

له هغو کړونو (فعلونو) سره چې مختاړی يې ناوېشوړ او چې د ستې واول يې بدلون مومي:

| Verb | Formel<br>مختاړی + کړسته + en | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| verschreiben | ver + **schrieb** + en | verschrieben |

**ګډ کړونه (Gemischte Verben):**

ګډ کړونه د دويم کړستاينوم (Partizip II) په جوړولو کې د (t–) پايتوری اخلي، د ستې واول يې بدلون مومي، ځينې کړونه يې د (–ge) مختاړی او ځينې هغوی يې بيا د (–ge) منځتاړی خپلوي.

د (–ge) له مختاړي، د (t–) له پايتوري او د ستې د واول له بدلون سره :

| Verb | Formel<br>مختاړی + کړسته + t | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| bringen | ge + **brach** + t | gebracht |

له هغه کړ (فعل) سره چې مختاړی يې وېشوړ (د جلا کېدو وړ) وي:

| Verb | Formel<br>مختاړی + منځتاړی + کړسته + t | Partizip II |
| --- | --- | --- |
| beibringen | bei + ge + **brach** + t | beigebracht |

له هغه کړ (فعل) سره چې مختاړی يې ناوېشوړ وي (د جلا کېدو وړ نه وي):

| Verb | Formel<br>t + کړسته + مختاړی | Partizip II |
|---|---|---|
| verbringen | ver + **br<u>a</u>ch** + t | verbracht |

لکه مخکې چې یادونه وشوه، دویم کړ ستاینوم چې د تېرمهال د کړستاینوم په نامه هم یادېږي، په تولیزه توګه د هغه کړن (چار) د څرګندولو لپاره راځي چې په تېر وخت کې پېښ شوی وي، حال دا چې لومړی کړ ستاینوم چې د وسمهال کړستاینوم په نامه هم یادېږي، د هغه کړن (چار) لپاره کارول کېږي چې په وسمهال کې پېښېږي:

| | |
|---|---|
| Die **ankommenden** Gäste freuen sich auf unsere Hochzeit. | را روان مېلمانه زموږ په واده خوښي کوي. (وسمهال) |
| Die **angekommenen** Gäste freuen sich auf unsere Hochzeit. | راغلي میلمانه (هغه مېلمانه چې راغلي دي، تېرمهال)، زموږ په واده خوښي کوي. |

### د دود ټاکي کړ دويم کړستاينوم (Das Partizip II von Modalverben)

دود ټاکی کړ (مودال فعل) د دویم کړستاینوم (Partizip II) په جوړولو کې د (-ge) مختاړی او د (t-) پایتوری خپلوي. د (müssen, können, dürfen) د کړونو (فعلونو) د ستې واول غورځي:

| Verb | Formel<br>t + کړسته + مختاړی | Partizip II |
|---|---|---|
| müssen | ge + muss + t | gemusst |
| können | ge + konn + t | gekonnt |
| wollen | ge + woll + t | gewollt |
| dürfen | ge + durf + t | gedurft |
| sollen | ge + soll + t | gesollt |

# Das Aktiv und Passiv چاروال او بېچار

ځينې ژبپوهان اوس هم په دې اند دي چې د کړ (فعل) چاروال او بېچار بڼې د يو بل عکس (سرچپه) دي، خو اړينه نه ده چې په هر اکر (حالت) کې دې دواړه بڼې د يو بل عکس وي. د غونډلې (جملې) چاروال (Aktiv) بڼه هغه ده چې کړند (فاعل) پکې مالوم وي، خو په بېچار (Passiv) کې نامالوم.

- سپين ګل ډوډۍ خوري.

په دې غونډله کې د ډوډۍ خوړونکی يا د دې چار (عمل) کړند (فاعل) مالوم دی چې سپين ګل دی. خو ځينې غونډلې کېدای شي چې په بيچار (مجهول) (Passiv) بڼه سره ورغېږي. لکه څنګه يې چې له نامه څخه مالومېږي، بېچار (مجهول) د هغه کړن يا عمل د ښوولو لپاره کارول کېږي چې کړند (فاعل) يې مالوم نه وي يا اړين نه وي چې ياد شي، يا هم په باخبري توګه همداسې پټېيل شوې وي (تصميم نيول شوی وي) چې د يوې غونډلې (جملې) کړند (فاعل) ياد نه شي. په همدې توګه ځينې وخت د يوه چار (عمل) د کړند (فاعل) تر يادولو دا اړينه برېښي چې په غونډله کې په خپله چار (عمل) د پام او غور وړ وګرځي، نه کړند (فاعل). له همدې امله بېچار (مجهول) کارول کېږي.

- انارګل وهل شوی دی.

دغه بېلګه په بېچار (مجهول) بڼه کې رغېدلې ده. دا مالومه نه ده چې انارګل چا وهلی دی او يا اړينه نه ده چې وهونکی ياد شي.

- انارګل ټپي دی.

په دې غونډله کې هم مالومه نه ده چې انارګل چا ټپي کړی دی يا اړينه نه ده چې بايد ياد شي. دلته هرګوره د انارګل د ټپي حالت څرګندول اړين دي. دا چې چا ټپي کړی دی، اړينه نه ده .

په جرمنۍ ژبه کې بېچار (مجهول) يا (Passiv) په دوه ډوله دی:

**د کړن (عمل) بېچار (Vorgangspassiv):** کله چې مالومه نه وي چې یو کړن (عمل) چا سر ته رسولی، یا که موږ وغواړو چې په غونډله کې یو چار (عمل) د لوستونکیو د پام وړ وګرځوو، د کړن بېچار کاروو. دغه ډول بېچار په بېلابېلو مهالونو (زمانو) کې په لاندې ډول جوړېږي:

| Zeitform مهال | Beispiel بېلګه |
|---|---|
| Präsens | Anaargul wird geschlagen.<br>انارګل به ووهل شي. |
| Perfekt | Anaargul ist geschlagen worden.<br>انارګل وهل شوی دی. |
| Präteritum | Anaargul wurde geschlagen.<br>انارګل ووهل شو. |
| Plusquamperfekt | Anaargul war geschlagen worden.<br>انارګل وهل شوی وو. |
| Futur I | Anaargul wird geschlagen werden.<br>انارګل به ووهل شي (په راتلونکې زمانه کې). |
| Futur II | Anaargul wird geschlagen worden sein.<br>انارګل به وهل شوی وي. (په راتلونکې زمانه کې) |

**د اکر بېچار (Zustandspassiv)** : کله چې د یوه اکر (حالت) څرګندول اړین وي، یا په بله وینا، کله چې د یوه کړن یا چار د پایلو څرګندول اړین وي، د اکر (حالت) بېچار کارول کېږي.

| | |
|---|---|
| Anaargul ist verletzt. | انارګل ټپي دی. |

په دغه بېلګه کې دا مالومه نه ده چې انارګل چا وهلی دی یا اړینه نه ده چې کړند (فاعل) یاد شي، بلکې د انارګل د حالت څرګندول اړین دي.

ځینې کړونه (فعلونه) شتون لري چې بېچار (Passiv) یې نه شي رغېدای یا کېدون نه لري، لکه هغه کړونه چې په لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت) کې کړی (مفعول) و نه شي لرلای او تېرمهال یې د (sein) له مرستیالکړ (کمکي فعل) سره جوړېږي:

| |
|---|
| Mein Kumpel ist nach Afghanistan gefahren.<br>زما ملګرى افغانستان ته (په موټر کې) تللى دى. |

که چېرې همدا کړ (فعل) د (haben) له مرستيالکړ سره را شي او په لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت) کې يو کړى (مفعول) هم ولرلاى شي، نو بېچار (Passiv) يې هم جوړېداى شي.

| | |
|---|---|
| **Aktiv**<br>**چاروال** | Ich habe meinen Kumpel nach Afghanistan gefahren.<br>ما خپل ملګرى افغانستان ته په موټر کې يووړ. |
| **Passiv**<br>**بېچار** | Mein Kumpel wurde (von mir) nach Afghanistan gefahren.<br>زما ملګرى (زما لخوا) افغانستان ته په موټر کې يووړل شو. |

په برسېرنه بېلګه کې (Kumpel) په لنډ کړي پېر (بې واسطه مفعولي حالت) کې راغلى دى او د غونډلې (جملې) آړ (شرط) يې پوره کړى دى .

له غبرګونکړونو (انعکاسي فعلونو) سره هم بېچار (Passiv) نه شي جوړېداى:

| | |
|---|---|
| Sie wäscht sich. | دا (ښځه) ځان مينځي. |

ځينې کړونه سربېره پر دې چې په لنډ کړي پېر ( بې واسطه مفعولي حالت) کې يو کړى (مفعول) هم لري، بيا هم بېچار (Passiv) بنه يې نه شي جوړېداى لکه له (haben, wissen, kennen) او د (es gibt...) له څرګندنې (اصطلاح) سره:

| | |
|---|---|
| Ich **habe** einen Stift. | زه يو قلم لرم. |
| Er **kennt** diesen Film. | دى دغه فلم پېژني. |
| Sie **weiß** die Antwort. | دا په ځواب پوهيږي. |
| **Es gibt** einen Park hier. | دلته يو پارک شته دى. |

### په چاروال (Aktiv) سره د بېچار (Passiv) بدلون:

مخکې وویل شول چې دا هرو مرو نه ده چې بېچار (Passiv) دې د چاروال (Aktiv) عکس (سرچپه) وي یا چاروال د بېچار، خو هغه غونډلې (جملې) چې په رېښتیا د یو بل عکس وي، د هغوی بدلون هم کېدونی دی . په غونډله (جمله) کې کړی (مفعول) په کړند (فاعل) بدلېږي، کړند (فاعل) غورځي او پر ځای یې د (von+Dativ) پېنوییز (ګرامري) جوړښت سره سم غونډله بدلون مومي او یا کړ (فعل) له (von) سره په لرکړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) کې راځي، کړ (فعل) د دویم کړستاینوم په بڼه راځي، د (werden) مرستیالکړ له کړند (فاعل) سره سم اوړون مومي.

| Aktiv – چاروال | Passiv – بېچار |
|---|---|
| Subjekt+Verb+Objekt | Objekt + werden + von + Subjekt+ (Verb) |
| Anaargul kauft das Auto.<br>انارګل دا موټر پېري (اخلي). | Das Auto wird von Anaargul gekauft.<br>موټر به د انارګل لخوا وپېرل شي. |

په چاروال غونډله کې (das Auto) کړی (مفعول) دی، په بېچار غونډله کې د غوندلې په پیل کې د کړند (فاعل) پر ځای راغلی، د (werden) مرستیالکړ د کړي (مفعول) (das Auto) سره سم ګردان شوی او د چاروال غونډلې کړند (Anaargul) په بېچار غونډله کې له (von) وروسته راغلی دی. په بېچار غونډله کې د دې برخې (von Anaargul) راوړل هرو مرو نه دي. راوړل یې په دې پورې اړه لري چې آیا باید یاد شي که نه. که چېرې یې راوړل اړین نه وي، کېدای شي چې له غوندلې وغورځول شي:

| Objekt + werden + finites Verb | |
|---|---|
| Das Auto wird gekauft. | موټر به وپېرل شي. |

د هغو چاروال (Aktiv) غونډلو اوړون چې کړند یې مالوم نه وي یا نه ښایي چې یاد شي:

| | **Aktiv – چاروال** | **Passiv – بېچار** |
|---|---|---|
| Präsens | Jemand füttert den Hund. | Der Hund wird gefüttert. |
| Perfekt | Jemand hat den Hund gefüttert. | Der Hund ist gefüttert worden. |
| Präteritum | Jemand fütterte den Hund. | Der Hund wurde gefüttert. |
| Plusquamperfekt | Jemand hatte den Hund gefüttert. | Der Hund war gefüttert worden. |
| Futur I | Jemand wird den Hund füttern. | Der Hund wird gefüttert werden. |
| Futur II | Jemand wird den Hund gefüttert haben. | Der Hund wird gefüttert worden sein. |

که چېرې په چاروال (Aktiv) غونډله (جمله) کې په لرکړي پېر (باواسطه مفعولي حالت) کې یو کړی (مفعول) راغلی وي چې باید د غونډلې (جملې) لومړۍ برخې ته د کړند (فاعل) پر ځای راوړل شي، نو په لرکړي پېر (باواسطه مفعولي حالت) کې پاتې کېږي.

| | |
|---|---|
| **Aktiv** | Man legte **dem Verletzten** einen Verband an.<br>(یوه سړي) ټپي (کس) ته پټۍ ور کېښووه. |
| **Passiv** | **Dem Verletzten** wurde ein Verband angelegt.<br>ټپي ته یې پټۍ ورکېښووه. |

په برسېرنه چاروال (Aktiv) بېلګه کې (dem Verletzten) په لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) کې راغلی دی. په دويمه بېګله کې چې په بېچار (Passiv) بڼه کې رغېدلې ده، (dem Verletzten) د غونډلې سر ته د کړند (فاعل) پر ځای راغلی دی، خو په خپل آر پېر (اصلي حالت) یا لر کړي پېر (با واسطه مفعولي حالت) کې پاتې شوی دی.

هغه چاروال (Aktiv) غونډلې (جملې) چې کړی (مفعول) و نه لري، کېدای شي چې د (es) په ملګرتیا په بېچار (Passiv) بڼه سره واړول شي:

| **Aktiv** | **Passiv** |
|---|---|
| Wir aßen gestern viel.<br>مونږ پرون ډېر خوراک وکړ. | Es/Gestern wurde viel gegessen.<br>پرون ډېر خوراک وشو. |

## اړیکوییکی (Die Konjunktion)

اړیکوییکي (د ربط توري) هغه ویيکي (کلمې) دي چې په یوه غونډله (جمله) کې د کلمو غونډونه، آره او آره غونډله (دوې اصلي جملې)، آره او مله غونډله (اصلي او فرعي جمله) او دوې ملې غونډلې (فرعي جملې) سره نښلوي یا د دوی تر منځ اړیکه رامنځ ته کوي یا هم د غونډلو (جملو) د مانا د پوهېدلو لپاره د دوی تر منځ یوه منطقي اړیکه ټینګوي.

| |
|---|
| Nicole ging nach Hause, **weil** sie morgen zur Arbeit geht.<br>نیکول کور ته ولاړه، ځکه چې سبا ته کار ته ځي. |
| Anaargul lebt gerne in Deutschland, **denn** er liebt Frieden.<br>انارګل په خوښۍ په جرمني کې ژوند کوي، ځکه چې له سولې سره مینه لري. |
| Ich wollte gerade rausgehen, **aber** Lea hat mich aufgehalten.<br>ما غوښتل چې د باندې ووځم، خو لېئه تم کړم. |

په جرمنۍ ژبه کې اړیکوییکي (د ربط توري) په ټولیزه توګه په درې ډوله دي:

**همغږکوونکي اړیکوییکي** (Die Nebenordnende Konjunktion) :

دغه ډول اړیکوییکي (د ربط توري) همغږې غونډلې (اصلي جملې له اصلي او فرعي جملې له فرعي سره) او کلمې یا د غونډلو برخې سره نښلوي:

| Konjunktionen | Formel und Beispiele |
|---|---|
| | **…Konjunktion** + **Subjekt** + **finites Verb** +… |
| aber | Ich war da, **aber du bist** nicht gekommen. |

| | |
|---|---|
| | زه هلته وم، خو ته را نغلې. |
| denn | Ich freue mich, **denn** ich habe ein neues Auto.<br>زه خوښ یم، ځکه چې یو نوی موټر لرم. |
| doch | Es ist wahr, **doch** es ist irgendwie unglaublich.<br>دا رېښتیا ده، خو یو ډول د باور وړ نه ده. |
| oder | Ist das dein Buch, **oder** es ist von Anna?<br>آیا دا ستا کتاب دی، که د انه؟ |
| sondern | Das ist nicht meins, **sondern** es ist von Lea.<br>دا زما نه دی، بلکې د لېئه دی. |
| und | Das Wetter ist heiß **und** schön.<br>هوا توده او ښکلې ده. |

## تابع کوونکي اړیکوییکي (Die Unterordnende Konjunktion) :

دغه ډول اړیکوییکي (د ربط توري) چې د (Subjunktionen) په نامه هم یادیږي، بېلابېلې غونډلې (ملې غونډلې له آرو) سره نښلوي، ملې غونډلې (فرعي جملې) پیلوي او له آرې غونډلې (اصلي جملې) سره تړاو ورکوي:

| Subjunktion | Formel und Beispiel |
|---|---|
| | **Konjunktion** + **Subjekt** + …… + **finites Verb** |
| als | Du warst nicht da, als ich kam.<br>کله چې زه راغلم، ته هلته نه وې. |
| bevor | Sie wollte mich sehen, bevor ich gehe.<br>مخکې له دې چې ولاړ شم، دې غوښتل چې ما ووینې. |
| bis | Ich warte auf dich, bis du kommst.<br>تر هغه وخته درته تم کیږم چې ته راشې. |
| da | Ich war froh, da du nicht hier warst.<br>زه خوښه وم ځکه چې ته دلته نه وې. |

| | |
|---|---|
| damit | Ich bin hier, damit du Pause machst.<br>د دې لپاره چې ته تفریح وکړې، زه دلته یم. |
| dass | Sie ist froh, dass du da bist.<br>دا خوښه ده چې ته دلته یې. |
| eher | Ich gehe weg, eher du mich rausschmeißt.<br>مخکې له دې چې ما وشړې، زه (لرې) ځم. |
| falls | Falls du kommst, koche Ich für dich.<br>که ته راځې، زه تا ته ډوډۍ پخوم. |
| indem | Man kann Deutsch lernen, indem man immer übt.<br>سړی جرمني زده کولای شي چې تل یې تمرین کړي. |
| nachdem | Ich wollte schlafen, nachdem du weg warst.<br>وروسته له دې چې ته ولاړې، ما غوښتل چې ویده شم. |
| obwohl | Er war müde, obwohl er nichts gemacht hat.<br>سربېره پر دې چې هیڅ یې نه وو کړي، دی ستړی وو. |
| seit | Seit es regnet, geht´s mir schlecht.<br>له کوم وخت راهیسې چې باران وریږي، ښه نه یم. |
| seitdem | Seitdem ich in Deutschland lebe, freue ich mich.<br>له کوم وخت راهیسې چې په جرمني کې ژوند کوم، خوښ یم. |
| sodass | Er ist ein guter Vater, sodass die Kinder ihn lieben.<br>دی یو داسې ښه پلار دی چې په ماشومانو ډېر ګران دی. |
| solange | Sie redete die ganz Zeit, solange wir aßen.<br>تر هغه وخته چې مونږ ډوډۍ خوره، دې ټول وخت خبرې وکړې. |
| sooft | Sooft sie hier kommt, fühle ich mich glücklich.<br>ځل چې دا (ښځه) دلته راشي، ځان ډېر بختور احساسوم. |
| während | Das Telefon klingelte, während ich schlief.<br>تیلیفون په داسې (وخت) کې زنګ ووهه چې زه ویده وم. |
| weil | Wir arbeiten hart, weil wir was erreichen wollen.<br>مونږ سخت کار کوو، ځکه چې غواړو چې یو څه شي ته ورسیږو. |

| | |
|---|---|
| wenn | Ich sehe sie immer, wenn sie zur Uni geht.<br>زه يې تل هغه وخت وينم چې دا پوهنتون ته ځي. |
| wohingegen | Ich arbeite hart, wohingegen mein Kollege faulenzt.<br>زه سخت کار کوم، حال دا چې زما همکار لټي کوي. |

**اړيکوييکي کړولونه** (Die Konjunktionaladverbien):

دغه ډول اړيکوييکي (د ربط توري) د کړول (قيد) په توګه راځي. توپير يې له نورو هغوی سره د نحوې يا غونډله پوهيز پلوه دی:

| Subjunktion | Formel und Beispiele |
|---|---|
| | **...Konjunktionaladverb** + **finites Verb** + **Subjekt** + **...** |
| allerdings | Sie wollen ein Auto kaufen, **allerdings** haben sie kein Geld.<br>دوی غواړي چې يو موټر واخلي، **خو** روپۍ نه لري. |
| also | Sie ist krank, **also** muss ich zu ihr gehen<br>دا ناروغه ده، **نو (خی)** زه بايد د دې کره ورشم. |
| andererseits | Es ist zu spät, **andererseits** können wir es versuchen.<br>ناوخته ده، **خو بيا هم** کولای شو چې هڅه يې وکړو. **(بلخوا)** |
| anschließend | Ich habe die Prüfung bestanden, **anschließend** habe ich in meinem Fachbereich gearbeitet.<br>زه په آزموينه کې بريالی شوم، **له دې وروسته (سره سم)** مې په خپله څانګه کې کار وکړ. |
| außerdem | Frieden ist schön, **außerdem** ist er nötig.<br>سوله ښکلې (ښه) ده، **سر بيره پر دې** اړينه هم ده. |
| dabei | Du singst sehr gut, **dabei** fühle ich mich so wohl.<br>ته ډېرې ښې سندرې وايې، **له دې سره** زه ښه احساس کوم. |
| dadurch | Ich gehe oft aus, **dadurch** lerne ich neue Leute |

| | |
|---|---|
| | kennen.<br>زه ډېر د باندې وځم، **په دې وسیله** له نویو خلکو سره پېژندګلوي کوم. |
| dafür | Bleib doch hier, **dafür** kriegst du ein Buch.<br>دلته پاتې شه، **د دې لپاره** ته یو کتاب لاس ته راوړې. |
| dagegen | Sie ist weg, **dagegen** kann ich nichts machen.<br>دا نشته (ولاړه)، **د دې پر ضد (وړاندې)** هېڅ هم نه شم کولای. |
| damit | Sie ist weg, **damit** bin ich glücklich.<br>دا نشته (ولاړه)، **په دې سره** (د دې له تصمیم سره) زه بختور یم. |
| danach | Ich habe die Schule fertig, **danach** habe ich studiert.<br>ما ښوونځی خلاص کړی دی، **وروسته** له هغې مې (فاکولته) ولوسته. |
| dann | Ich schriebe erst ein Gedicht, **dann** malte ich dich.<br>ما لومړی یو شعر ولیکه، **بیا** مې ته رسم کړې. |
| darauf | Ich bin mit dem Studium fertig, **darauf** bin ich stolz.<br>ما پوهنتون خلاص کړ، **په دې سره** ویاړمن یم. |
| darum | Sie ist Polizistin, **darum** möchte sie nicht trinken.<br>دا پولیسه ده، **نو ځکه** نه غواړي چې (الکول) وڅښي. |
| davor | Dieses Jahr bin ich hier, **davor war ich** in Kanada.<br>سږ کال دلته یم، **مخکې له دې** په کاناډا کې وم. |
| dazu | Kaufst du einen Laptop, **dazu** bekommst du eine Tasche.<br>که یو لپټاپ وپېرې، **له دې سره** یو بکس (دستکول) هم په لاس راوړې. |
| deshalb | Er war krank, **deshalb ist er** zuhause geblieben.<br>دی ناروغ وو، **له همدې** امله په کور کې پاتې شوی دی. |
| deswegen | Sie wollte mich sehen, **deswegen** ist sie hier.<br>دې غوښتل چې ما ووینې، **له همدې امله** دلته ده. |
| einerseits | **Einerseits** habe ich Kopfschmerzen, …<br>**یو خوا** سرخوږی لرم، … |
| ferner | Das Auto ist günstig, **ferner** bekommst du noch Reifen. |

| | |
|---|---|
| | موټر ارزانه دی، **سره له دې** ټیرونه هم په لاس راوړي. |
| folglich | Sie ist in Afghanistan, **folglich** kannst du sie nicht sehen.<br>دا په افغانستان کې ده، **نو ځکه** يې نه شې ليدلای. |
| genauso | Sie war wütend, **genauso** war ich auch.<br>دا ډيره په قهر وه، **همداسې** زه هم (په قهر) وم. |
| immerhin | Das Essen war Ok, **immerhin** war es günstig.<br>خوراک بد نه وو، **خو (لږ تر لږه)** ارزانه وو. |
| inzwischen | Wir müssen warten, **inzwischen** können wir lesen.<br>موږ بايد تم شو، **په عين حال** کې کولای شو چې لوست وکړو. |
| jedoch | Er gab sich viel mühe, **jedoch** gewann er nicht.<br>ده ځانته ډېر زحمت ورکړ، **خو** و يې نه ګټله. |
| schließlich | Ich habe sie viel gesucht, **schließlich** fand ich sie zu Hause.<br>ما دا ډيره ولټوله، **په پای کې** مې په کور کې پيدا کړه. |
| seitdem | Sie hat ihn verlassen, **seitdem** ärgert er sich ständig.<br>دې (ښځې) دی پرېښود، **له هغه وخت راهيسې** دی هره شېبه قهرېږي. |
| später | Sie war bis Mitternacht hier, **später** ging sie nach Hause.<br>دا تر نيمې شپې پورې دلته وه، **وروسته له هغې** کور ته ولاړه. |
| trotzdem | Wir haben dich gern, **trotzdem** müsst du weggehen.<br>پر موږ ګران يې، **(خو) سربېره پر دې** بايد له دې ځايه ولاړ شې. |
| vorher | Ich bin Mechaniker jetzt, **vorher** war ich Journalist.<br>اوس ميخانيکر يم، **مخکې له دې** ژورناليست وم. |
| weder … noch | **Weder** dieses Buch **noch** das andere möchte ich haben.<br>زه **نه** دا کتاب غواړم، **نه** دا بل هغه. |
| zuvor | Wir leben zurzeit hier, **zuvor** waren wir in Afghanistan. |

| | |
|---|---|
| | موږ اوس دلته ژوند کوو، **مخکې له دې** په افغانستان کې وو. |
| zwar | Diese Gewürze besteht aus drei Zutaten und **zwar** aus Pfeffer, Salz und Koriander.<br>دغه مساله له درېو شيانو څخه جوړه شوې ده **چې عبارت دي** له مرچو، مالګې او ګشنيزو. |

## Der Satz غونډله

غونډله (جمله) د وېو (کلمو) داسې يو غونډ (ګروپ) دی چې يوه بشړه يا خپلواکه مانا ولري. کوشنۍ ترينه غونډله هغه ده چې يو کړند (فاعل) او يو خبر (اوړېدلی فعل) ولري، خو غونډله (جمله) کولای شي چې پر کړند (فاعل) او خبر (اوړېدلي فعل) سربېره نورې برخې هم ولري:

| | |
|---|---|
| کوشنۍ ترينه غونډله | Sara studiert.<br>سارا زده کړه کوي. |
| اوږده غونډله | Anaargul möchte nächstes Jahr sein Auslandssemester für sechs Monate in die beste Universität Deutschlands absolvieren.<br>انارګل غواړي چې راتلونکی کال د شپږو مياشتو لپاره د خپل بهرني سمتر دوره د جرمني په تر ټولو ښه ترين پوهنتون کې سرته ورسوي. |

## د غونډلې ډولونه Satzarten

### ځرګندني غونډله Der Aussagesatz

ځرګندني غونډله (بيانيه جمله) هغه غونډلې ته وايي چې يو حقيقت، يو اندواند او يا هم يوه فرضيه پکې نغښتل شوې وي. د دغه ډول غونډلو په لومړۍ برخه يا پيل کې کړند (فاعل) يا کړول (قيد) يا

هم وخت، په دویمه برخه کې اوړېدلی کړ (ګردان شوی فعل) او په وروستۍ برخه کې بشپړاند توکي راځي .

| | |
|---|---|
| کړی (مفعول) + اوړېدلی کړ (ګردان شوی فعل) + کړند (فاعل) | |
| Ich **liebe** dich. | پر ما ګرانه یې. |
| Spingul **studiert** Physik. | سپین ګل د فزیک (فاکولته) لولي. |

## پوښتغوندله Der Fragesatz

په جرمنۍ ژبه کې دوه ډوله پوښتنغوندلې (سوالیه یا استفهامي جملې) شتون لري:

**مالوماتي پوښتنې:** دې ډول پوښتنو ته بشپړاندې پوښتنې یا (W–Fragen) هم وایي. دوی د (wer, was, wie, warum) په پوښتوییکو (استفهامي کلمو) سره پیلېږي او په ځواب کې د مالوماتو غوښتنه کوي:

| | |
|---|---|
| **Wer** ist da? | څوک دي؟ |
| **Warum** bist du so spät gekommen? | ولې دومره ناوخته راغلئ یې؟ |
| **Wie** bist du hierhergekommen? | دلته څنګه راغلئ یې؟ |
| **Was** hast du heute gemacht? | نن دې څه شی وکړل؟ |

**پرېکړه ییزې پوښتنې Entscheidungsfrage:** دغه ډول پوښتنې د انګرېزۍ ژبې د (Yes, No) پوښتنو په څېر دي. دوی په یوه کړ (فعل) پیلېږي او په ټولیزه توګه په هو یا نه سره ځوابېږي:

| | |
|---|---|
| Arbeitest du heute?<br>**Nein**, ich habe heute frei. | نن کار کوې؟<br>نه، زه نن رخصت یم. |
| Studierst du?<br>**Ja** klar. | زده کړه کوې؟<br>هو مالومداره. |

ناسیده پوښتغونډلې (استهامي جملې) د سیده هغوی په پرتله له درنښت او احترام ځخه ډکې دي. دوی مله غونډله په (ob) سره پیلوي. د دې لپاره چې احترام یا درنښت لا نور هم ځرګند شوی وي، په پیلیزه غونډله کې لومړی یا دویم انشایي (Konjunktiv II) راځي.

| |
|---|
| Er fragt, **ob** er heute früher nach Hause gehen **könnte**.<br>دی پوښتي که چېرې نن لږ مخکې کور ته ولاړ شوای شي. |
| Er wollte wissen, wann wir ihm was schenken **würden**.<br>ده غوښتل چې پوه شي چې موږ به ده ته څه وخت یوه تحفه ورکوو. |

**هېښني غونډله Ausrufesatz:** هېښني غونډله (ندایه جمله) یوه حیرانتیا ځرګندوي. په پای کې یې بلننبه اپښوول کېږي.

| | |
|---|---|
| Wie schön! | څومره ښایسته یا ښه! |
| Was für ein Auto! | څه یو موټر ! |

**امري غونډله (Aufforderungssatz):** هغه غونډله (جمله) ده چې یوه غوښتنه، هیله یا یو امر ځرګندوي. په پای کې یې بلننبه اپښول کېږي:

| | |
|---|---|
| Halt! | درېږ (درېش)! |
| Geben Sie mir bitte ein Kaffee! | مهرباني وکړئ یوه کافي راکړئ! |
| Mach deine Hausaufgabe! | خپله کورنۍ دنده وکړه! |

**ارماني غونډله Wunschsatz:** دغه ډول غونډله یو ارمان ځرګندوي. په پای کې یې بلننبه اپښوول کېږي:

| | |
|---|---|
| Wenn du hier wärest! | درېغه چې ته خو دلته وای! |

| | |
|---|---|
| Wenn der Sommer nur kommen würde! | دریغه چې پسرلی راشي! |

## Die Verneinung نفي

په جرمنۍ ژبه کې منفي غونډلې (جملې) په (Nein) او (Kein) سره رغېږي.

| Die Verwendung von Nein – د "نه" کارول | |
|---|---|
| Er trinkt **nicht**. | په ساده مهال کې له کړ (فعل) سره، د غونډلې په پای کې راځي. |
| Er hat heute **nicht** gegessen. | په ګډغونډلو (مرکبو جملو) کې له بېشړ کړ څخه وړاندې د غونډلې په پای کې راځي. |
| Sie hat **nicht das** Buch gekauft, sondern die Stifte. | له مالوم آرټیکل او تولنومځري (ملکي ضمير) سره له آرټیکل څخه وړاندې راځي. |
| Das ist **nicht Nicole´s** Tochter, sondern ihre Nachbarin. | له ځانګړنومونو څخه مخکې راځي. |
| Er hat **nicht dich** geliebt, sondern deine Schwester. | له نومځرو (ضميرونو) څخه وړاندې. |
| Das ist **nicht schwer.** | له ستاينوم (صفت) څخه وړاندې. |
| Sie geht **nicht gerne** tanzen. | له کړول (قيد) څخه وړاندې. |
| Wir gehen **nicht um acht Uhr**. | له وخت (ساعت) څخه وړاندې. |
| Wir gehen **nicht ins Restaurant**. | له ځای څخه وړاندې. |
| Wir kochen **nicht mit Gas**. | له دود (طريقې) څخه وړاندې. |

که بنايي چې په غونډله (جمله) کې يو غړی يا يو غونډ منفي شي، د (Nein) کلمه له همغه غړي څخه مخکې راځي. د (Nein) د کلمې د ځای په بدلون سره کېدای شي چې د غونډلې مانا هم بدلون ومومي:

| | |
|---|---|
| Ich habe dir **nicht** gestern einen Stift gegeben (sondern heute).<br>ما پرون تا ته یو قلم در نه کړ (بلکې نن). | |
| **Nicht** ich habe dir gestern einen Stift gegeben.<br>ما تا ته پرون یو قلم در نه کړ (دا زه نه وم چې پرون مې تا ته یو قلم درکړ). | |
| Ich habe **nicht** dir gestern einen Stift gegeben (sondern Marina).<br>ما تا ته پرون یو قلم در نه کړ (بلکې مرینې ته) | |
| **Die Verwendung von Kein**<br>**د (kein) کارول** | |
| Ich habe Durst.<br>Ich habe **keinen** Durst. | له هغه نوم سره چې آرټیکل نه وي ، د نفې لپاره (kein) کارول کیږي. |
| Ich habe **ein** Buch.<br>Ich habe **kein** Buch. | د نامعین پېژندوییکي (آرټیکل، یا د تعریف توري) پر ځای هم (kein) کارول کیږي. |

ځینې وخت کېدای شي چې یوه غونډله (جمله) په (Nein) او (Kein) دواړو سره منفي شي. د بېلګې په توګه، کله چې مله غونډله (فرعي جمله) په (Sondern) سره پیل شي:

| |
|---|
| Ich habe **nicht** Tee, sondern Wasser getrunken.<br>ما چای نه، بلکې اوبه څښلې دي. |
| Ich habe **keinen** Tee, sondern Wasser getrunken. |

## د غونډلې برخې

**کړند (Subjekt):** د یوه کار سرته رسوونکی ته کړند (فاعل) وایي.

| | |
|---|---|
| <u>**Jana**</u> macht ihre Hausaufgabe. | ینه خپله کورنۍ دنده سر ته رسوي. |

**کړی (Objekt)** : مفعول هغه کس یا څیز ته وایي چې یو کار پې شوی وي. دوی کېدای شي چې لنډ کړی (بې واسطه مفعول، Akkusativobjekt) ، لر کړی (غیر مستقیم یا با واسطه مفعول، Dativobjekt)، تولپېرکړی (اضافي مفعول، Genitivobjekt) او سربلیز کړی (Präpositionalobjekt) وي.

| |
|---|
| Maya hat **<u>den Laptop</u>** mitgenommen.<br>میه لپټاپ له ځان سره یووړ. (لنډ کړی، بې واسطه مفعول) |
| Maya hat den Laptop mit einem **Stift** zerkratzt.<br>میه په قلم سره لپټاپ وګروه (داغ یې کړ). (قلم لر کړی یا با واسطه مفعول دی) |

**کړولیزه برخه (Adverbialbestimmung):** هغه برخه ده چې کړولیز (قیدي) توکي لکه سربلونه (Präposition)، کړولیزې غونډلې (قیدي جملې) چې په کړي پېر (مفعولي حالت) او یا تولپېر (اضافي حالت) کې راغلې وي.

| | |
|---|---|
| Ich warte auf dich **<u>am Seeufer</u>**. | زه تا ته د سیند پر غاړه تم یم. |

**خبر (Prädikat)** : د غونډلې (جملې) هغه برخه ده چې له اوړېدلي کړ (ګردان شوي فعل) څخه جوړه شوې وي.

| | |
|---|---|
| Anaargul **<u>arbeitet</u>** sehr gut. | انارګل ډېر ښه کار کوي. |

## کړولیز توکي Adverbial

کړول (قید) یا کړولیز توکي (قیدي توکي) هغه ویيکي (کلمې) دي چې یو کړ (فعل) یا یو ستاينوم (صفت) ستايي یا د دوی د تون (ځای)، مهال (وخت)، پېر (حالت)، دود او آړونو (شرایطو) په اړه سرباري مالومات راکوي.

| | |
|---|---|
| Anaargul liest **sehr** gut. | انارګل ډېر ښه لوست کوي. (دود ټاکنه) |
| Anaargul liest in der **Klasse**. | انارګل په ټولګي کې لوست کوي.(تون، مکان) |
| Anaargul liest, **weil** ihm das gefällt. | انارګل لوست کوي، ځکه چې د ده خوښېږي. (مله غونډله د کړول یا قید په توګه) |

## ستايوی Das Attribut

ستايوی (Attribut) په خپله ډېرولو یا اضافه کولو ته وايي، خو په ژبه کې د ستاينوم (صفت) یا کړستاينوم (Partizip) په توګه یا هم د ملې غونډلې (فرعي جملې) په څیر کارول کېږي. دی د یوه کړند (فاعل) یا یوه کړي (مفعول) په باره کې مالومات راکوي. ستايوی کېدای شي چې همدارنګه د هغه څیز په باره کې اضافي مالومات راکړي چې یوه کړند (فاعل) یا کړي (مفعول) ویلي یا لیدلي وي. ستايوی په خپله خپلواک نه دی، بلکې د غونډلې (جملې) د یوې کلمې یا یوې برخې سره تړاو لري . ځینې وخت له ستاينوم (صفت) سره توپیرېدای نه شي ځکه چې د ستاينوم (صفت) دنده پر مخ وړي.

Ich habe die Frau, <u>die gestern einen Unfall hatte</u>, heute wieder gesehen.

ما هغه ښځه نن بیا ولیده چې پرون یې ټکر وکړ.

په دغه غونډله کې ستايوی په خپله مله غونډله ده چې د کړي (مفعول) په باره کې سرباري مالومات راکوي.

ستایوی کېدای شي چې له خپل اړوند توکي یا نوم څخه ښی یا کیڼې خوا ته راشي. له همدې امله د ښي یا کیڼ ستایوي په نامه سره یادېږي.

**کیڼ ستایوی** د ستاینوم (صفت) یا کړستاینوم (Partizip) په توګه له نوم څخه مخکې یا کیڼې خوا ته راځي:

| | |
|---|---|
| ein **grünes** Haus | یو شین کور |
| das **gestrichene** Haus | رنګ شوی کور |

**ښی ستایوی** له خپل اړوند توکي یا نوم څخه وروسته یا ښی خوا ته راځي:

| | |
|---|---|
| Das Haus **in Kabul…** | دغه کور چې په کابل کې دی . . . |
| Das Haus **meiner Eltern…** | زما د مور او پلار کور . . . |
| Das Haus, **das ich gestern kaufte,** | دغه کور (کوم) چې ما پرون واخیست، |

## Die Valenz der Verben

### د کړ د نښلولو وړتیا

په ژبپوهنه کې د یوه ویي (کلمې) په ځانګړې توګه د یوه کړ (فعل) د نښلولو وړتیا هغې ځانګړتیا ته وایي چې په ځان پسې نورې کلمې ونښلولای یا د ځان بشپړولو غوښتنه وکړای شي.

د غونډلې (جملې) د جوړښت ډول په کړ (فعل) پورې اړه لري. په دې مانا چې دا کړ دی چې په غونډله کې نور توکي ټاکي. یو کړ کولای شي چې په غونډله کې لاندې توکي وغواړي:

| | |
|---|---|
| Ich lache. | یوازې یو کړند (فاعل) او یو کړ (فعل) |
| Ich lese ein Buch. | یو کړند، یو کړ او یو لنډ کړی (بې واسطه مفعول) |
| Ich helfe dir. | یوازې یوکړند (فاعل) او یو لر کړی (با واسطه مفعول) |
| Ich helfe dir eine Wohnung | یو کړند (فاعل)، یو لر کړی (باواسطه مفعول)، |

| | |
|---|---|
| zu finden. | يو لنډ کړی (بې واسطه مفعول) |
| Ich warte auf dich. | يو کړند (فاعل)، يو سربليز کړی (اضافي مفعول) |
| Ich schreibe eine Karte an deinen Bruder. | يو کړند، يو لنډ کړی (بې واسطه مفعول) او يو سربليز کړی (اضافي مفعول) |

## Die Wortstellung im Satz

### د غونډلې ويې اوډون

په غونډله کې ويې اوډون (د غونډونو يا کلمو نظم) پر دې بحث کوي چې په يوه غونډله (جمله) کې د ويو (کلمو) او غونډونو ځای وټاکي، په تېره د کړند (فاعل)، کړي (مفعول) او اوړېدلي کړ (ګردان شوي فعل). په دې مانا چې کړند (فاعل)، کړی (مفعول) او اوړېدلی کړ په غونډله کې چېرته راشي.

که څه هم چې په جرمنۍ ژبه کې د ويو اوډون (کلمو نظم) کېدای شي چې په څو ډولونو سره ورغېږي، خو په توليزه توګه د يوې غونډلې په لومړۍ برخه کې کړند (فاعل)، په دويمه هغه کې اوړېدلی کړ (ګردان شوی فعل) او په دريمه برخه کې يې کړی (مفعول) راځي:

| | |
|---|---|
| Anaargul schreibt einen Brief. | فاعل + اوړېدلی کړ (فعل) + کړی (مفعول) |

په جرمنۍ ژبه کې ډول ډول غونډلې (جملې) شتون لري. ځينې يې يوازې د اوړېدلې کړ (ګردان شوي فعل) برخه او بله منځنۍ برخه لري. ځينې غونډلې (جملې) بيا مخکنۍ او د ناوړېدلې کړ (ناګردان شوي فعل) برخه او ځينې يې بيا يوه بله برخه هم لري.

**قاعده:**

- اوړېدلی کړ (ګردان شوی فعل) د غونډلې (جملې) په دويمه برخه کې راځي.
- کړنومی (مصدر) او دويم کړستاينوم (Partizip II) د غونډلې په پای کې راځي.

- په مله غونډله (فرعي جمله) کې اوړېدلی کړ (فعل) د غونډلې په پای کې راځي.
- کړند (فاعل) ډېر وخت د غونډلې (جملې) په پیل کې راځي، خو همداسې کېدای شي چې د غونډلې په پیل کې کړی (مفعول) هم راشي یا د مهال یا هم ځای یادونه وشي.

| | |
|---|---|
| Das Kind fängt den Ball. | کړند + اوړېدلی کړ + کړی (مفعول) |
| Den Ball fängt der Hund. | کړی (مفعول) + اوړېدلی کړ + کړند |
| Gestern hat das Kind den Ball gefangen. | وخت + کړند + کړی (مفعول) + اوړېدلی کړ |

**لاندې لارښوونې د پام وړې دي:**

- باید هڅه وشي چې په غونډله کې پېژندل شوي څیزونه له نویو او ناپېژانده هغوی څخه وړاندې یاد یا ذکر شي او نامالومه یا نوی څیز د غونډلې په پای کې.

Ich habe **deinem** Bruder **ein** Buch gegeben.

په دغه بېلګه کې «کتاب» یو نامالوم څیز دی چې د غونډلې په پای او «ستا ورور» یو مالوم توکی دی چې له نامالوم څخه وړاندې راغلی دی.

- لر کړی (با واسطه مفعول)، وخت او ځای کېدای شي چې د غونډلې (جملې) په مخکنی، منځنی یا وروستی برخه کې راشي، خو که چیرې د دغو توکو یادول د یوې ځانګړې پاملرنې په موخه وشي، نو ښایي چې له لنډ کړي (بې واسطه مفعول) څخه وروسته راوړل شي:

Ich habe deinem Bruder in der Schule einen Laptop **gestern** gegeben.

په برسېرنه بېلګه کې وخت (پرون) له لنډ کړي (بې واسطه مفعول، لپټاپ) څخه وروسته راغلی دی. او دا هم د دې لپاره چې د لوستونکیو پام ور ته را وګرځي. ځای تل تر تله له وخت څخه وړاندې راځي، په ځانګړې توګه په لیکلې ژبه په ځانګړې توګه په رسمي مکتوبونو کې.

- په ناسیده وینا (غیر مستقیم نقل قول) کې د لر کړي (با واسطه مفعول) پر ځای که نومځری (ضمیر) وکارول شي، نو هرو مرو باید په خپل آر (اصلي) ځای راشي.

1. Ich habe **ihm** (deinem Bruder) in der Schule einen Laptop gestern gegeben.
2. Ich habe in der Schule einen Laptop ihm (deinem Bruder) gestern gegeben.

په برسېرنه لومړۍ غونډله کې د (deinem Bruder) پر ځای د (**ihm**) نومځری (ضمیر) راغلی دی. له همدې امله باید په خپل ځای راوړل شي. په دې مانا چې لومړۍ غونډله سمه، خو دویمه هغه غلطه ده، ځکه چې لر کړی (با واسطه مفعول) په دویمه غونډله (جمله) کې پر خپل ځای نه دی راغلی.

## Die Indirekte Rede ناسیده وینا

انارګل وویل چې دی به ژر تر ژره خپل وطن ته ولاړ شي.

په دغه بېلګه کې خبرې کوونکي یا ویناوال د انارګل خبرې راوړې دي یا یې د وینا نکل کوي چې انارګل څه وویل یا څه پلان لري. ویناوال د انارګل خبرې په خپله ژبه او کلمو کې رانغښتلې دي، خو د ده موخه یې په بشپړه توګه څرګنده کړې ده. د وینا دې ډول نکل ته ناسیده وینا (غیر مستقیم نقل قول) وایي.

که چېرې خبرې کوونکي ویلي وای چې:
انارګل وویل: "زه به ژر تر ژر خپل وطن ته ولاړ شم."

برسېرنه بېلګه سيده وينا ده. لکه څنګه چې انارګل خبرې کړې دي، ويناوال ټکی په ټکی هماغسې د ده خبرې تکراروي.

د يوه چا د خبرو يا وينا د راوړلو يا تکرار لپاره سړی کولای شي چې سيده يا ناسيده وينا وکاروي. ناسيده وينا هرګوره ډېره کارول کېږي. په جرمنۍ ژبه کې سړی کولای شې چې ناسيده وينا په مله غونډله کې د (sagen, fragen, dass) په کلمو سره پيل او د انشايي (Konjunktiv) په مرسته ورغوي. لومړی انشايي، دويم هغه او د (würde) بڼه ټول يوه مانا لري. لومړی انشايي هرګوره نن سبا دومره نه کارول کېږي لکه دويم انشايي (Konjunktiv II) او د (Würde) بڼه.

| | |
|---|---|
| Er sagte, dass er nach Hause kommen **würde**. | ده وويل چې دی به کور ته راشي. |
| Er sagte, dass er nach Hause **komme**. | |
| Er sagte, dass er nach Hause **käme**. | |

## په ناسيده وينا د سيده وينا بدلون

نومځری (ضمير) هرو مرو بدلون مومي او که اړينه وي، د ځای او وخت وينا هم بدلون غواړي:

| | |
|---|---|
| Sie sagte: „**ich** habe ein Buch gekauft." | دې وويل: "ما يو کتاب اخيستی دی." |
| Sie sagte, **sie** habe ein Buch gekauft. | دې وويل چې ګواکې دې يو کتاب اخيستی دی. |

لومړۍ بېګله چې سيده وينا ده، د (ich) نومځری (ضمير) پکې راغلی دی، خو په دويمه بېلګه کې چې په ناسيده وينا کې رغېدلې ده، د (ich) نومځری په (sie) سره بدلون موندلی دی.

**کله چې د وخت او ځای کلمې بدلون مومي:**

| | |
|---|---|
| Er sagte: „Sie **war gestern hier**." | ده وويل: "دا پرون دلته وه." |
| Er sagte, sie **sei am Tag zuvor dort** gewesen. | ده وويل چې ګواکې دا مخکې له هغې ورځې هلته وه. |

### د څرګندني (بيانيه) غونډلې بدلون

د دې لپاره چې څرګندني غونډلې (بياني جملې) په ناسيده وينا سره واړوو، اړينه نه ده چې هرو مرو دې د انشايي په بڼه ورغېږي، بلکې کېدای شي چې په (dass) سره هم ورغول شي:

| |
|---|
| Sie sagte, sie **habe**/hat ein Buch gekauft. |
| Sie sagte, **dass** sie ein Buch gekauft habe/hat. |
| دې وويل چې ګواکې يو کتاب پېرلی دی. |

### د پوښتغونډلې (سوالي جملې) بدلون

پوښتغونډله په پوښتوييکي (استفهامي کلمې) سره پيلېږي:

| | |
|---|---|
| Direkte Rede<br>سيده وينا | Ich fragte: „Was wollte sie?“<br>ما پوښتنه وکړه: "دې څه غوښتل؟" |
| Indirekte Rede<br>ناسيده وينا | Ich fragte, was sie wollte/was sie gewollt habe.<br>ما پوښتنه وکړه چې دې څه غوښتل يا غوښتلي دي. |

که چېرې په پوښتغونډله (سوالي جمله) کې پوښتويی (استفهامي کلمه) شتون و نه لري لکه هغه پوښتنې چې په هو او نه سره ځوابېږي، نو په غونډله کې ناسيده وينا د (ob) په ويي (کلمې) سره پيلېږي:

| | |
|---|---|
| Direkte Rede<br>سيده وينا | Ich fragte: „**Hat** sie dir geholfen?“<br>ما پوښتنه وکړه: "آيا دې در سره مرسته وکړه؟ |
| Indirekte Rede<br>ناسيده وينا | Ich fragte, **ob** sie ihm geholfen habe/hat.<br>ما پوښتنه وکړه چې آيا دې له ده سره مرسته وکړه؟ |

د هیلو څرګندولو لپاره په ناسیده وینا کې د (sollen) دود ټاکی کړ (مودال فعل) کارول کیږي، خو که چېرې وغواړو چې غونډله (جمله) مو له درنښت څخه ډکه وي، د (mögen) دود ټاکی هغه کاروو.

| | |
|---|---|
| Direkte Rede<br>سیده وینا | Er sagte: „Komm bitte später.“<br>ده وویل: "مهرباني وکړه وروسته راشه." |
| Indirekte Rede<br>ناسیده وینا | Er sagte, ich soll später kommen.<br>ده وویل چې ښایي زه وروسته راشم. |
| Indirekte Rede<br>ناسیده وینا (درنښت) | Er sagte, ich möge später kommen.<br>ده وویل چې ښه به دا وي چې وروسته راشم. |

ناسیده وینا کېدای شي چې په انشایي (Konjunktiv) او خبري (Indikativ) بڼه سره راشي، خو په ورځنیو خبرو اترو کې خلک ډېره خبري بڼه کاروي. که چېرې خبرې کوونکی د خبرو یا وینا په ریښتینولۍ باور ولري، نو خبري بڼه کاروي او که چېرې شکمن وي، انشایي بڼه کاروي.

| | |
|---|---|
| Anaargul sagt, dass er Pilot **ist**. | انارګل وایي چې دی پیلوټ دی. (خبري)<br>(ډاډه یم چې انارګل ریښتیا وایي) |
| Anaargul sagt, dass er Pilot **sei**. | انارګل وایي چې ګواکي دی پیلوټ دی. (انشایي)<br>(ډاډه نه یم چې انارګل به پیلوټ وي.) |

**په لومړي انشایي (Konjunktiv I) کې ناسیده وینا:**

| | **Direkte Rede** | **Indirekte Rede** |
|---|---|---|
| Präsens | „Ich gehe.“<br>„Ich esse.“ | Sie sagte, sie gehe.<br>Sie sagte, sie esse. |
| Perfekt | „Ich bin gegangen.“<br>„Ich habe gegessen.“ | Sie sagte, sie sei gegangen.<br>Sie sagte, sie habe gegessen. |
| Präteritum | „Ich ging.“ | |

| | | |
|---|---|---|
| | „Ich aß.“ | کېدای شي چې درې واړه مهالونه یو ډول ورغبږي. مانا یې یوه ده. |
| Plusquam–perfekt | „Ich war gegangen.“ „Ich hatte gegessen.“ | |
| Futur I | „Ich werde gehen.“ „Ich werde essen.“ | Sie sagte, sie werde gehen. Sie sagte, sie werde essen. |
| Futur II | „Ich werde gegangen sein.“ „Ich werde gegessen haben.“ | Sie sagte, sie werde gegangen sein. Sie sagte, sie werde gegessen haben. |

کله چې د لومړي انشايي (Konjunktiv I) بڼه له خبري (Indikativ) هغې سره یو ډول وي، نو دویم انشايي (Konjunktiv II) یا د (Würde) بڼه کارول کېږي، د بېلګې په توګه:

Er sagte: „Sie haben uns fotografiert.“

Er sagte, **dass sie uns fotografiert haben.**

دویمه غونډله چې ناسیده وینا ده، لومړۍ انشايي (Konjunktiv I) او خبري (Indikativ) بڼه یې یو ډول ده. له همدې امله باید دغه ډول غونډلې په دویم انشايي (Konjunktiv II) کې ورغبږي:

Er sagte, **dass sie uns fotografiert hätten.**

کله چې د دویم انشايي (Konjunktiv II) بڼه د خبري (Indikativ) له بېشړ تېرمهال (Präteritum) سره یو ډول وي، نو ناسیده وینا د (würde) په بڼه سره رغبږي:

Er sagte: „Sie lachen viel.“

Er sagte, **dass sie viel lachten.**

دویمه غونډله چې ناسیده وینا ده او په دویم انشايي کې راوړل شوې ده، د خبري (Indikativ) له بېشړ تېرمهال (Präteritum) سره یو ډول ده. له همدې امله باید د (Würde) په بڼه ورغبږي:

Er sagte, **dass sie viel lachen würden.**

که چېرې د یوې غونډلې (جملې) رغېدل (جوړول) په لومړي انشايي (Konjunktiv I) کې کېدون ولري، خو سړی یې په دویم انشايي کې ورغوي، په دې مانا چې د وینا په رېښتینولۍ کې شک کوي:

| | |
|---|---|
| Lisa sagte, sie **sei** froh. (konj. I) | لیزا وویل چې ګواکي دا خوښه ده. |
| Lisa sagte, sie **wäre** froh. (konj. II) | لیزا وویل چې ګواکي دا خوښه ده یا خوښه به وي. (امکان لري چې خوښه نه وي.) |

پای

و من الله توفیق

محمد کریم نور